# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنگ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

د ۱۳۹۳ش کال دریمه گڼه

(اسد - سنبله)




د بابا په شاعرۍ کې یوه سرگردانه اروا

د خدای په امان

احمدشاه بابا او سندھ

د سقراط تلپاته نظریات

د احمدشاهي دربار ځیني لیکونه

علامه حبيبي

# احمدشاه بابا او سنده

په (۱۱۶۰ هـ) کال چې نادر شاه افشار ووژل سو او احمدشاه بابا ابدالي په کندهار کې په پاچهي منتخب سو، په دغو وختو کې د سنده امير ميان نور محمد کلهوړه وو، چې د نادر افشار تر امر لاندې به ئې حکمراني کوله.

احمدشاه بابا چې د خپل سلطنت په دوهم کال (۱۱۶۱ هـ) هند ته سفر وکی نو ده د ميان نورمحمد امارت په سنده کې په رسميت ومانه او "شاه هواز خان" لقب ئې ورکی او په مقابل کې هم نورمحمد د هر کال ماليات رالېږل د کندهار دربار ته ومنل.

ميان نورمحمد وروسته د مالياتو په رالېږلو عمل و نه کی نو احمدشاه بابا ده ته يو فرمان واستاوه چې ژر د سنده ماليات راولېږي کله چې دغه فرمان سنده ته ورسېده، نو ميان نورمحمد خپل سفير بهايي خان کلهوړه د ډېرو تحفو سره د کندهار دربار ته راواستاوه، او لکه چې خايف سندهي چې په نامهٔ نغز کې وايي خپل اطاعت ئې داسې څرګند کی:

سلامش رسانش بعجـز و نياز

ای شـاه افـــغان گــردن فراز

منـم بنـــدهٔ تاجـــدار تو ام

به فرمـــانبری نامـــدار تـو ام

من از لطف تو چشم ارم بهـی

بر شـــاه مـــن ميکنم آگـهی

د دې سفارت په راتګ سره د کندهار د دربار روابط له سندهي اميرانو سره ښه سوه او له سنده څخه يو دايمي سفير او وکيل په کندهار او کابل کې مقرر سو، چې نوم يې شيخ محمد محفوظ سرخوش د شيخ محمد مريد قانونګر زوی وو.

سره له دې چې احمدشاه بابا د مالياتو د رالېږلو په تعهد قانع سو او د سندهي اميرانو داخلي آزادي ئې تر افغاني سلطنت لاندې ومنله، مګر بل کال بيا هغه ماليات د کندهار دربار ته نه راورسېدل، نو احمدشاه بابا د سردار جهان خان سپه سالار په قيادت يو لښکر په (۱۱۶۶ هـ) کال سنده ته واستاوه او د دغه کال په پای کې په خپله هم هلته ولاړ، او د (۱۱۶۷ هـ) د محرمي پر څلرمه محمد آباد ته ورسېدی. د سنده دربار چې دغه خطر حس کی نو ئې ژر خپل وزير دېوان ګدومل د احمدشاه بابا حضور ته د ايلچي په ډول راواستاوه او ميان نورمحمد هم بيا اطاعت وکی.

احمدشاه بابا ګدومل ته د ليدني اجازت ور نه کی، مګر ګدومل ډېر تحايف وړاندې کړل، او په دغو کې څو بوري خاوري هم وې، چې ګدومل د سنده د اولياوو له قبرو څخه د احمدشاه بابا حضور ته سوغات راوړي وې، او ده ويل چې دا د سنده بهترينه تحفه ده.

احمدشاه هم دغه تحفه ومنله او ميان نورمحمد ئې وباخښه، مګر دغه امير يوه مياشت وروسته مړ سو او پر ځای ئې د احمدشاه بابا له حضوره څخه د ده زوی محمد مرادياب خان د "سربلند خان" په لقب هلته امير سو او ځکه چې د سبي ولايت مستقيماً د احمدشاهي پايتخت کندهار سره نښتی وو نو ښکارپر هم په کندهار پوري رسماً ونښلول سو او هم له دغه وخته په ښکارپر کې افغاني حاکم مقرر سو، او ځکه چې دا ښار د سنده او افغانستان تر منځ يو مهم تجارتي ځای وو نو د دغو دوو سيمو تجارتي روابط له دې لارې ډېر سول او د احمدشاه بابا له خوا اسماعيل خان پني په سنده کې د دربار نماينده او قاضي محمد محفوظ د ټټې حاکم مقرر سول، او په (۱۱۷۱ هـ) کال دېوان ګدومل د احمدشاهي فرمانه او ډېرو خلعتو سره له کندهاره سنده ته ولاړ او عطرخان د مرادياب خان ورور د يرغمل په ډول په احمدشاهي دربار کې وو، څو چې د سندهي اميرانو خانه جنګي شورو سوه او احمدشاه بابا عطرخان ور واستاوه او د بلوڅو او نورو مشرانو په نامه ئې فرمانونه صادر کړل چې د عطر خان سره کومك وکي، مګر له دغو اميرانو څخه غلام شاه غالب سو او د سنده د سفير دېوان ګدومل په سعی احمدشاهي دربار هم ده ته د صمصام الدوله لقب ورکی، د (۱۱۷۷ هـ) کال د ربيع الثاني او جمادي الاولی په مياشتو کې دوه احمدشاهي فرمانونه د ده په نامه صادر سول.



# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

مؤسس
**محمدولي زلمی**

سرپرست چلوونکی
**مطیع الله روهیال**

کتنپلاوی
**ډاکټر عبدالرازق پالوال**
**څېړندوی شېرشاه رشاد**
**حیات الله رفیقي**
**عبدالکریم طالب**
**فضل محمد پنهان**

کمپیوټر چاري
**عثمان عاصي**

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
تلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

**دریمه دوره**
**د ۱۳۹۳ش کال دریمه ګڼه (زمری - وږی)**
**پرله پسې ٦۴ مه ګڼه**

**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کي د مجلې بیې**

| |
|---|
| هیواد: ۲۰ -افغانۍ |
| پاکستان: ۵۰ -کلداري |

**کلنی ګډون**

| |
|---|
| هیواد: ۱۲۰ -افغانۍ |
| پاکستان: ۳۰۰ -کلداري |
| نور هیوادونه: ۸۰ -امریکایي ډالره |



# فهرست

## لیکنې



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

د اداري يادابښت:

# د خدای په امان!

**د کندهار مجلې درنو لوستونکو!**

کندهار مجله له څه باندي پنځوسو کلونو راهیسي چاپېږي. په دغه اوږده دوره کي ئې د لنډو او اوږدو وقفو تر څنګ د کندهار د تاریخ، ادب، سیاست او کلتور په باب بېلابېل موضوعات له تاریکۍ څخه روڼا ته را ایستلي دي. د دې سیمي د نومیالیو او عالمانو ارمانونه ئې په خپلو پاڼو کي خوندي کړي دي او په مجموع کي ئې د دې سیمي د تاریخ او فرهنګ ډېري خواوي په خپل زړه کي ساتلي دي. زما له پاره د خوښۍ ځای دئ چي د تېرو اتلسو میاشتي څخه مي د کندهار مجلې د چلولو مسئولیت لاره. د ۱۳۹۲ش کال د حمل له میاشتي څخه بیا تر ننه پوري مي د کندهار مجلې (۹) ګڼې چاپ کړې. په دغه اوږده دوره کي مي تر خپله وسه کوښښ کړی دئ، چي د مجلې محتوا ته تر نورو خواوو ډېره توجه وکم. د دغه کوښښ تر څنګ مي دا هڅه هم کړېده، چي مجله پر خپل وخت او ښه صحافت تر لوستونکو ورسوم. دا چي زه به په دې کار کي څونه بریالی یم، قضاوت په لوستونکو پوري اړه لري.

نن (۲۸ سنبله ۱۳۹۳ش) زما او د کندهار مجلې یا په بل عبارت د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست سره زما رسمي اړیکی ختم سو. خو د کندهار مجلې او په مجموع کي د دې ولایت د مطبوعاتو سره به خپله همکاري ساتم، ځکه د مطبوعاتو او په مشخص ډول د مجلې سره همکاري زما عادت ګرځېدلی دئ، د عادت بدلول او تغیر ډېره محاله خبره ده.

په دغه دوره کي چي د کندهار مجلې سرپرستي زما پر غاړه وه، ما کوښښ کړی دئ، چي د دې مجلې تر چاپې خوا د محتوا ډېر خیال وساتم. د مجلې له پاره د نوو تحقیقي او څېړنیزو موضوعاتو او مطالبو پیدا کول زما له لومړنیو کارونو څخه وو. د مجلې موضوعات مي د څېړني، ترجمې او خاطراتو پر بېلابېلو سرلیکونو ووېشل، چي دا کار د مجلې په پخوانۍ نشراتي پالیسي کي یو نوی تغیر دئ، خدای دي وکي چي د لوستونکی د قبول وړ ګرځېدلي وي.

د کندهار مجلې په چلولو کي زما سره زما مشرانو پوهانو، لیکوالانو او څېړونکو ډېره همکاري کړېده. د دغو مشرانو تر څنګ نوو او ځوانو محققینو، مترجمینو او شاعرانو هم همېشه په خپلو همکاریو نازولی یم، چي د دوی ټولو له همکاریو او مرستو څخه مننه کوم. که د دوی مرسته او همکاري نه وای، په اوسني کیفیت د مجلې چاپول او تر خلکو رسول ناممکن کار وو. د مجلې کامیابي او ټولي ښې خواوي د دې مجلې په همکارانو پوري اړه لري خو نیمګړتیاوي او ستونزي ئې زما کمزوري ښیي.

زه په داسي حال کي چي د خپلو همېشنیو همکارانو څخه مننه کوم، د مجلې له لوستونکو سره خدای په اماني کوم، او د دې درانه مسئولیت رسمي پېټی د ریاست مسئولینو ته پرېږدم او له لویه خدایه دوی ته توفیق غواړم چي د مجلې په چلولو کي تر اوسني حالت نور هم ښه والی راولي.

مینه او ادب

مطیع الله روهیال

د مجلې سرپرست چلوونکی



ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D.

# د کندهار نامیان، ځوانان او یاران

(دوهمه او وروستۍ برخه)

ځوانان:

دوی درې رازه خلک ول. لوچګان، ښکاران او خواران. نامیان هغه کسان ول چې جنګونه ئې کړي ول، وهل سوي ول او بندونه ئې ګاللي ول. دوی په خپل مهارت سره یا تصادفاً ژوندي پاته سوي ول. د پایلوچانو او نامیانو تر منځ یو بل تل ؤ. دوی هم افراد ول. څه ډله او ټپله ئې نه لرل. دوی کسب کاران یا دوکانداران ول او نو خود هم د څه وزلې خاوندان ول. دوی به چا ؤ چا له ځینو پایلوچانو څخه هم کار اخستئ او د غرمې له خوا ئې خواړه پر دوی ول چې هغه به هم ډېر کله شلومبې او ډوډۍ (نمړۍ) ول، خو کله کله به ئې له موسمه سره سم بانجن یا کدو یا داسي بل کتغ هم ورکاوه. پایلوچان په دې خوشحاله کېدل چې یو راز ژړ یا الماسي ځنځیر به ئې تر لاس وروتړی. یا به ئې و چا ته د کم بل څه ځواني وکړه.

د ځوانانو لویه ځواني دا وه چې په کال کښې یا په دوبي کښې به ئې ٦ – ٨ غزلچیان د شپې له خوا څخه ورغوښتي ول او له دوی سره به موزیکوالا هم ول. نور به نو د دباندي سرای یا سراچه له خلګو څخه ډکه وه. چا به د جنګ کره کان په لاس کښې نیولي او ویښ به ئې ساتل چې وایي بیا ښه جنګ کوي. بل چا به ناره یي کر کان، جل یا بلبل راوړي او ځرولي به

ئې ول چي له موزيک او بدلو سره به ئې رېز کاوء یا ټک برک ویل.

غزلچیان به په یوه کوچنۍ دائره کښې ناست ول. دوی په رون سره دوې یا درې بدلې یا غزلې ویلې او نورو به ئې کسر ورسره وایه. کله چي به د دوی د ټولو د غزلو ویلو رون یا نوبت تېر سوئ ؤ، او ټولو ته چای ورکول کېدلې. په دغه ترځ کښې به سنگر رامیدان ته سو، دء به په خوله او عمل سره د نورو پېښې کولې. په پخوا کښې د پښتنو، پارسیبانانو او هندوانو تر منځ اخښون – بخښون ډېر نه ؤ. نو دوی سمه پښتو ویلای نه سوای، مذکر به ئې په مؤنث وایه یا ئې شاؤخوا د دغه. کله چي به سنگر د پارسیبان پېښې کولې یا به ئې د هغه غوندي گډه وډه پښتو ویله، اوریدونکي به د خندا له لاسه څخه میل تللي ول. ما به داسي فکر کاوء چي دی به واقعاً پارسیبان وي. خو کله چي به ئې د هندو غوندي پښتو ویله او د هغیو پېښې به ئې کولې، ما به داسي خیال کاوء چي دی به واقعاً هندو وي او پښتو به وایي. د دء دغه المانۍ alamaney یوازي ژبنۍ پېښې نه وې، بل به ئې لا د نورو کسانو د پېښو بیان هم کاوء. په هغیو سره به ئې هم خلگ خندول. له بده مرغه چي په وگړیزه کندهار کښې نه کېمره وه او نه هم ټېپ ریکارډر ، چي د دغه نابغه د المانیو ثبت ئې خوندي کړئ وای. یا چا د دء ژوندلیک کښلئ وای.

په ژمي کښې به هم دغسي باندار جوړېدئ. خو په هغه کښې به یوء پیاوړي نقلچي یو یا بل نقل کاوء یا داستان. که به نقلچي زوړ ؤ او په خپله به ئې د داستان نارې کولای نه سوای نو به بل ځوان ورسره ناست ؤ او د نقل نارې به هغه کولې. کله چي به نقل کوونکي په خپله د داستان نارې کولې او و به ئې ویل چي: دء یا دې داسي ناره پر وکړه. شپانه به ئې ورته وویل چي نو څه به ئې ویلي وي؟ نقل کوونکي به ورته وویل: وابه ئې ورې! یا ته به ئې واورې!

ترمخه مي د شپانه یادوءنه وکړه. شپانه به یو ټاکلی کس ؤ. دء به و داستان ویونکي ته ښه، ښه لرل. یا به ئې کله ږغ پر وکړ: نو دغه مهال بیا څه پېښه سوه؟

داستان ویونکي به ورته وویل: دا ترخځه به نو وروسته واورې! دغه مهال به تفریح وکړل سوه او چای به وچیښل سوې. ترخځه به د داستان یو ضمیمه یا اړخکي بیان ؤ چي لنډ وروسته به داستان ویونکئ بیرته و اصلي داستان ته وروگرځېدئ.

دغسي کسان چي هم ئې له لوچگانو سره وړ وتل، هم ئې له نامیانو، یا نورو داسو کسانو سره چي دوی به کرکبازان یا زرکبازان یا کوتربازان ول او هم ئې خپل کسب ؤ کار یا د مځکې او باغ عائد لاړء او دوی به پر لوچگانو یا پایلوچانو باندي څه پېرزوینه کول، یا ژړ یا سپین ځینځیر، یا یو راز مری به ئې ورترلاس کړي یا به ئې په غاړه کړي وې او هم د یوء یا بل مهال و سترخان ته به ئې ناست ول. دغه کسان چي د دوی به ښه په کېدل او و دوی ته به ئې د یوء یا بل څه ځواني وکړه و هغه ته ئې ځوان ویل چي څوک ښه ځوان دئ. موږ ئې نا امیده کړي نه یو. دوی یا پایلوچانو چي به و یوء تلي چرسو ته اړول او و هر چا ته چي به ئې

د مرستي لاس ونیوئ، هغه ئې ځوان باله. داسي چي ځوانه ته خو مو نن په داد ورسېږه. دغه خواست عموماً ملنګانو کاوه. پایلوچانو و چا ته لاس نه نیوئ.

ځوان هغه څوک ؤ چي د يو څه یا بل څه ښندنه به ئې کوله او هم به ئې ښه سلوک ورسره کاوه. دا یوه یادوءنه مي هېره سوه چي د غزلو ویلو په لوی باندار کښي به د چرسو چیلم هم څکول کېدئ. دغه به د ملنګانو تر هغه لوی ګاندیال کوچنی ؤ او تر عادي د تمباکوو تر چیلم به غټ ؤ. ټولو چرس نه څکول خو ځینو په دوه –درې دوده کشول.

غزلو به تر سپېدو داغه پوري دوام پیدا کاوه، چي دغه مهال به نو د سهار اذانونه هم وسول. غزلي به د هندي مقامونو سره سمي ویل کېدلې. لکه بیرومي، پهاړي، بهاګ او نور. تر ټولو وروسته به د ګهیز په شنه خره کښي به ئې اسا او آساوري وزمونه غزلي ویلې. تر دغو وروسته به د غزلو او د ښادروان سنګر د اله مانیو باندار و پای ته ورسېدئ.

په دغه ځای کښئ به د یوې یا بلي پېښاولې یادوءنه هم کوم. د کابل دروازې له کلافصیل څخه څه شل دوکانه د سرپوښه بازار یا د ښار د مرکز و خوا ته، د هغې کوڅې پر مخامخ چي د ښادروان عبدالهادي ریشا او ښاغلي محمدمعصوم هوتک کورونه دي، د ښادروان عبدالباري آشنا د پلار دوکان ؤ. د ښاغلي عبدالباري جهاني د پلار تجارت خانه هم و دغه ته څرمه وه. په دوبي به د دغه دوکان و مخي ته فرش هوار کړء سوئ ؤ. بیجلي څراغ به ورته لګېدی. د شپې په سر کښي به اوز کسانو سپرې بدلي ولې. د دغو بدلو یا غزلو کسر هم اوږد ؤ، څه اته –لس (۸–۱۰) بیته. دغو کسرچیانو به ئې کسر په شرپ سره وایه. د کسر په سر کښي، په منځ کښي، او پای کښي به ئې آ آ ... تر هغه مهاله ویل څو چي ساه ئې دوام کولای سوای. تر دغه وروسته به بدل زن یا غزلچي ورپسې آ آ آ ... کړه او په دغه پسي به ئې د غزلي بند وایه. د بند په منځ کښي به ئې بیا آ آ آ ... کړه او په دء پسي به کسرچیانو هم آ آ آ ... کړه. د بند په پای کښي به غزلچي آ آ آ ... کړه او په دء پسې به کسرچیانو او پسې به ئې کسر هم هغسي وایه.

دغه سپرې بدلي لیکلي وې که نه وې. څوک ئې څه څرک لري؟ تلاښ دي پسي وکړل سي. لوی ځوان دي ئې مل سي.

## یاران که عیاران

څوک چي د لوچک او لوچګان په باره کښي څه لولي، نو به ښایي فکر وکي چي عیاران به مراد له عریان څخه وي چي د لوچک مانا لري. د لغت د تورو په تېر ؤ ببر سره به له عریان څخه عیاران جوړ سوی وي، او هم په غلط فهمي سره داسي کېدای سي، خو متن او عبارت ئې نه تائیدوي. پس نو عیار او عیاران څه او څوک ول؟ عیار د سم کړل سوي، برابر کړل سوي او صفا کړل سوي ماناوي لري. اوس به د منابعو هغه ټکي وګورو چي ښاغلي عبدالباري جهاني له معتبرو اخستیځونو څخه وراخستي دي.

چالاک زړء ور، لاري وهونکي، اصولي کسان، ښورښیان، چي یعقوب لیث صفاري

هم له دغو عیارانو څخه ؤ (فرهنګ عمید).

د ښو انساني صفتونو خاوندان، زړه ور، مېړه، صابر، پر وعدو باندې ټینګ، ناموسي، له نورو او بې وزلانو سره مرستندوی، رشتیاني (قاموس نامه: ۲۴۷ مخ).

یعقوب لیث متدین، سخي، بخښناوو، چې له لس زره څخه تر سلو زرو دینارو پورې ئې بخښل او عبدالله بن زیاد ته ئې پنځه سوه زره دیناره وبخښل (تاریخ سیستان: ۲۶۳).

دغه پسې بیان به د ښاغلي جهاني له لیکنې څخه توري په توري راواخلم:

"یعقوب بن لیث د یوه مسګر زوی وو. په لومړۍ ځوانۍ کې ئې د لارو په لوټولو او کاروانونو په وهلو ګوزاره کوله. د بخښښ او عطا له پاره ئې دا په میلیونونو دیناره د نورو د خزانو د لوټلو او هغو لښکر کښېیو او چور او تالان څخه تر لاسه کړي ول چې ښايي په لس هاوو (لسونو) زره او حتی په سلهاوو (سوونو) زره بېګناه انسان به پکښې قتل سوي وي. یعقوب د خپلې پاچهۍ (بادشاهۍ) ټول کلونه په جنګ، چور او تالان تېر کړل. په هر ځای کې چې به د خزانو او مالونو په باب خبر ورته ورسېدئ هغې خوا ته به ئې حرکت وکړ او مالونه به ئې په زور او ظلم تر لاسه کړل (تاریخ ګزیده: ۳۷۹ مخ).

تر مسالک و ممالک وروسته دغه پسې لیکنه له ګردېزي ۳۰۴ مخ څخه اخستله سوې ده:

"یعقوب بن لیث بن معدل د سیستان د قرنین د کلي اوسېدونکی وو او کله چې ښار ته راغلی نو مسګري ئې شروع کړه، او د میاشتې په پنځه لس درهمه مزدور وو. څرنګه چې په دې لږ مزدورۍ ئې قناعت نه سوای کولای نو عیار سو او غلا او لار نیولو ته ئې مخه کړه (تاریخ ګردیزي: ۳۰۴). کرار کرار ئې ډله ډېره غټه سوه او د بست د عیارانو مشر سو. وروسته د سیستان د حاکم صالح بن نصر کتانې ... په خدمت کې شامل سو. هغه د خپلو لښکرو سپه سالارۍ ورکړه. وروسته ئې صالح له قدرته لیرې کړ. صالح وتښتېدی او د اوسنې قندهار په شمالي سیمو کې د یعقوب د لښکرو لاس ته ورغلئ. یعقوب هغه بندي کړ او په بند کې مړ سو. یعقوب بن لیث د سیستان مستقل حکمران سو او له دغه ځایه څخه ئې هرې خوا ته فتوحات پیل کړل.

... خلیفه خپل استازی وروا ستاوه او ورته وې ویل چې په تېر ځل کې زموږ قدرت درمعلوم سو نو باید چې توبه وکړې او زموږ له مخالفت څخه لاس واخلې او د خراسان په پاچهۍ قانع سې. نو یعقوب په جواب کې ورته وویل چې زه د یوه نجار زوی یم. د خپل بازو او همت په زور مې ځان تر دغه ځایه را رسولی دئ او تر څو مې خلیفه راپرزولی نه وي آرام به و نه کړم. که مې دا مرام تر سره سو خو واوا که نه وي نو پیاز او ډوډۍ او د نجارۍ کسب زما څخه څوک اخستلای نه سي (تاریخ حبیب السیر: ۲/ ۳۴۷).

"ګواکې عیار زموږ د مؤرخینو او قاموس نامې د لیکوال د ادعا په [پر] خلاف ملکه نه ده. منتهي د عیار ژوند باید پر دریو مرحلو وویشل سي، عیاران چې معمولاً جسماً قوي خلګ وي، په لومړي سر کې عادي غله وي. کله چې

د وخت حکومتونه د بې ادارګۍ او کمزورۍ له امله نه په ښارونو کي د خلګو د کورنیو او مالونو امنیت تامین کړای سي او نه په لویو لارو کي د تجارتي کاروانونو او خزانو د ساتلو غم وخوړلای سي نو د غلو ډلي منځته راسي".

په وروسته کښې ښاغلي جهاني پر ور اخستو موادو او عباراتو باندي ښه په زړه پوري پایلامه کښلې ده. له یوې خوا څخه موږ تاریخي شواهد او اسناد نه لرو، له بلې خوا څخه څه چي سته هغه دغسي له واقعیته څخه لیري، کلونه – کلونه تر پېښو وروسته د خلګو ګومانونه، د یوء او بل له خولې څخه اورېدلي اوازې او انګروزې دي. زء به د موضوع د روښانولو له پاره اوز لنډ ګامونه ښه وړاندي کښېږدم.

د پخوانیو پښتنو (پرثوانو) بادشاهان ویشت اسپه ول – دوی به شل زره سپارء لرل. خو د هر ولایت واکوال به ئې بهیر اسپه ؤ، چي دء به لس زره سپارء لرل. په دغو کښې یو هم د زاړي زال زوی، د سام نریمان نمسی رستم (روتستخم) ؤ. دی هم بهیر اسپه ؤ، چي لس زره سپارء ئې لرل. د دې امکان به خود نه ؤ چي دء دي دغه لس زره سپارء، د دوی اسان، او هم د دوی ماینې چي په واګونونو کښې به ئې د جنګ و اویجي ته ورسره ببولي، ټول غونډ د روغي او امن په وخت کښې په یوه مېنه او یا اوبجه کښې ساتلای سوای. موږ وروسته د ستر احمدشاه بابا له کړنو څخه پوهېږو چي د دء سپاره سالان به د یوء جاګیر خاوندان ول. و دوی ته مځکي ورکړل سوي وې. هر یوء چي په یوه وا wa اوبه پر مځکه لګولې هغه به و بادشاه ته د اړتیا پر مهال یا په اضطراري حالت کښې شپېته سپارء ورکول. خو هغه چا چي په یوه واله اوبه پر مځکه سپرولې، هغه به دېرش سپارء ورکول. له دغو څخه به نیمی د ټاکلي وخت له پاره، درې میاشتي، په کندهار ښار کښې ول. کله چي به د ځینو سپاه سالارانو روڼ یا نوبت ؤ او کله به د ځینو نورو سپاه سالارانو روڼ ؤ. دوی هر یوء په خپله کوڅه کښې کمند او غوجل لارء.

نو یو دغسي نظام به روستم هم لارء. یو بل خارق العاده کار چي رستم کړئ ؤ، څو د جنسي انحرافاتو مخنیوئ ئې کړئ وي، دء د خپلو سپرو ماینې په ګڼ شمېر واګونانو کښې آن د جنګ و اویجي ته لا ورسره بېولې. زما اصلي مراد او موخه دا ده چي په عادي حالاتو کښې دغه لس زره سپارء، د دوی ماینې، او اسان په یوه مېنه او اوبجه کښې ساتل کېدلای نه سوای. دوی به خود د هلمند په کلو او کلاوو کښې خپل کورونه او ټاټوبي لرل. همدغسي به ئې د سګزستان (ساکستان یا سیستان) په بېلابېلو اویجو کښې کورونه او کلاوي لرلې. د اړتیا په اضطراري حالت کښې به ئې دوی ټول سره ورغونډېول.

د ۱۳۳۰ش په شاؤخوا کښې د هلمند یوازنی کس چي شپېته (٦٠) سپارء ئې لرل او د حکومت مالیه ئې ورکولای نه سوای یا ئې ظاهراً نه ورکوله، حکومت دی د کندوز و چاردرې ته فرار کړئ ؤ. د ۱۳۴۳ش په پسرلي کښې چي زء په لنډۍ پلالکه او تاغز کښې د دء مېلمه وم هم دء او هم نورو د دء د شپېتو سپرو خبري کولې. کله چي به دی پر هره خوا

۸
زمری-وږی
۱۳۹۳ل
علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله
کندهار

ورغلئ، هغه کلي ئې و ټولو ته مېلمستیا ورکوله. ما چي و دء ته د بدخشان او په سرې سره د شېوې او شغنان بیان وکړ، دء هم راته وویل چي د فراري پر مهال دی هم هورې اوسېدلئ ؤ. دء لا دا هم راته وویل چي دء دوې شغنانۍ ماینې کړي وې. زما سلابلا تر خوله ورته ووتل: "کمه دي؟ چیري دي؟" ده ومسل او وئې پوښتلم: "څې کوې؟"

ما ورته وویل: په څه شغني به ورسره ږغېدلئ وای او د وطن حال به مي ورته ویلئ وای. دی خاموش سو او خوابدئ کښېنستئ. تر څه څنډ وروسته ئې راته وویل: "هغوی مړې سوې؟"

ما هورې په خانشین کي هم یو جگ سړی ولیدئ او د تاغز حبیب الله خان هم غټ سړی ؤ. د یاد کړي سړي نوم مي په یاد نه دئ. دء راته وویل چي دء دېرش سپاړء لرل. دء یوه واله اوبه لرلې او د تاغز حبیب الله خان یوه وا wa اوبه لرلې یائې پر مځکو لگولې.

له دغو یادوءنو څخه مي مراد او موخه دا ده چي د رستم لس زره، یو بهیر، سپاړء به دغسي په سیستان کښي هم ځله وېشلي اوسېدل، او یو ټاکلئ شمېر به ئې د اوز میاشتو له پاره د اړتیائي حالت له پاره او هم د بېلابېلو تمریناتو او کسرت له پاره و مرکزي ښار ته لېږل کېدل چیري چي به روستم اوسېدئ.

د رستم سپاړء د جنگ په حالت کښي او خود به هم په کسرت کښي شامخ سپرېدل. کله چي به ئې پر دښمن باندي، په ترکیبي لښندۍ سره د غشو وارونه کول، د دوی مخ د اسانو د سر و خوا ته ؤ، خو کله چي به دښمن پر ورمخ ته کېدونئ ؤ، دوی به مخ د اسانو د لکۍ و خوا ته شامخ پر اسانو سپرېدل. په داسي ترڅ کښي چي اسان به د جنگ له میدان څخه تلوني ول، شامخ سپرو به پر دښمن باندي غشي اورول. دا چي یوله یوه سپاه به څنگه منظمه یوه پلا پر مخ تله او بیا به مخ د شا پر خوا باندي منظم شاکوچ کاوء، پښنه داسي وه چي دوی د ټاکلي شمېر جنگیالیانو په منځ کښي یو آس سپور لاړء. د دغه آس و یوې او بلې خوا ته به یوه – یوه ډنډوره یا یومخیزه ډول نغاره ؤ. د دغسي اسانو سپرو به هغه ډولونه وهل. د ډولونو په یو وزم ږغولو سره به اسان پر مخ تلل، په بل وزم ږغولو سره به ئې اسان گام گام تلل، په بل راز ږغولو سره به ئې اسان ځای پر ځای درېدل او په بل وزم ږغولو سره به ئې اسانو مخ گرځاوء، یا به سوکه یا به په سپړلو تلل. د رستم استادانو و اسانو ته دغه راز روزنه ورکړې وه.

کله چي به اسان د جنگ له میدان څخه تر دغسي یوء گښت ورگرځېدلي ول، و هر جنگیالي ته به بل آس په ټاټوبي کښي د هردلي له خوا څخه تیار ولاړ ؤ، چي و دواړو خواوو ته به ئې د غشو کپسونه یا ډوبیان ډک ول. جنگیالیان به له سترو اسانو څخه کښته سول، او پر هوسا تیار کړل سوو اسانو به سپاړء سول. بل هردلي به هغه ستړئ آس گرځاوء او هم به د بل گښت او کښ (برید) له پاره تیار کړئ درلود.

ما تر مخه وویل چي دغه یو بهیر، لس زره، اسان په یوء ځای کښي له جنگیالیانو، دوو هردلیانو، او د خپلو ماینو سره په یوء ټاټوبي کښي هر کله ساتل کېدلای نه سوای. نو دوی به خود په ټاکلي یا متناسب شمېر سره د هلمند په اوږدو، په خپلو کلو او کلاوو کښي اوسېدل. خو یو ټاکلئ شمېر به ئې د ساتني او کسرت له پاره و مرکزي ښار ته ورتلل. په دغه کار سره به د رستم

حاکمیت تثبیت کېدئ. و دوی ته به خواړه له خپله کلي څخه ورلېږل کېدل. خو د نور خوراکي مواد هم.

تر دغې لنډې مخالا وروسته به و اړونده موضوع ته وروګرځم څو دا مې ښوويلې وي چې یعقوب بن لیث نه مسګر ؤ، نه نجار ؤ، او نه هم غل ؤ غدو ؤ. دا چې ډېرې ولجې ئې کړې وې، دغه د هر فاتح لښکر ولجه وه او هم به ئې نورې جڅې اخستي وي. دغه فتوحات که به د هر مرام له پاره سوي ول، پایلامه ئې خود دغه چور، چپاول او جڅه اخستل وه.

د یعقوب لیث اصلي ټاټوبئ سپار ؤ، چې تر اوسه پورې هم دغه لوی کلئ سته. دا چې پر سیمه باندې هغه مهال هم عربان چاپېر سوي ول، او د دوی په ژبه کښې پې /پ/ نه سته، نو ئې خود پې /پ/ په فې /ف/ سره اړولې وه. دا چې سفار څه مانا نه ښندله، نو ئې کاتبانو دغه نوم صفار کېښ چې تر دې وروسته پورې او لا نن ورځ هم صفار د مسګر په مانا سره اخستل کېږي چې د نامه لغوي مانا هم داسي ده. ټوله غلط فهمي ئې د نامه عربي کولو توجیه ده. و چا ته به د سپار، لکي، شملان، پلالکي، بست او ځینو نورو پخوانیو نومونو مانا یا فقه اللغه ورمعلومه نه وي.

سپار د هلمند راډء پر کیڼې غاړې باندې اوس یو لوی کلئ دئ. په ځنګ کښې ئې د تاریخي کلا کنډوالې تر ۱۳۴۳ش پورې لا پاته وې. خورا انځوریز (منقش) کودرې او کودرکي پکښې پراته ول. ما ئې څه کودرکي د کابل پوهنتون د بشر پوهني و دفتر ته راسره یوړل. (له امریکا څخه مې چې ډېر د غشو ډبرین توبریان، د ډبرین تبر سر، پرېکړونې ډبره Selt ورته راسره راوړي ول).

دغه راز نقشي یا ټاپه کړل سوي کودرکي ما بل هیچرې لیدلي نه ول. یعقوب د زمري زوی (بن لیث) به خود یو شمېر سپارء لرل. دی خود غښتلئ او پیاوړئ کس ؤ. په هیلمند کښې لا تر دغه مهاله پورې د عربانو او عربي ژبې نفوذ خپور ؤ. یوء شاعر و ده ته په عربي ژبې شعر وایه. دء ورته ویلي وه: په هغه څه چې زء نه پوهېږم نو هغه ولې راته وایې؟

دمخه تر دې چې یعقوب لیث سپاري و قدرت ته ورسېږي، د پښتنو مسلمانانو او پښتنو کافرانو تر منځ پر بست باندې جنګونه کېدل، چې کله به د یوې خوا او کله به د بلې خوا په واک کښې ؤ. فروخي ساکزي سیستاني په دغه باره کښې یو شعر ویلئ دئ چې زما ئې نیم بیت په یاد دئ:

به لکان آمد زنبیل و لتې خورد به لینګ

لکان به ښایي دغه ځای ؤ، چې اوس کارته لګن نومیږي.

دی کله زمبیل یا زنبیل بلل سوئ دئ او کله هم رتبیل بلل سوئ دئ یا به دغه دوه کسان ول. وروسته د مسلمانانو او کافرانو تر منځ پر بست باندې داسي روغه سوې وه چې حاکم یا واکوال به ئې مسلمان وي، خو واک به ئې د رتبیل شاهانو څخه وي. نو دغه راز شرایطو و یعقوب لیث سپاري ته موقع مساعده کړې وه. دء نه یوازې بست له رتبیل شاهانو څخه نیولئ ؤ بل لا کندهار هم کله چې دء د غزني تر نږدو پورې سیمه فتح کړې وه، نو باندې ژمئ سوئ ؤ. دء په دغه سیمه کښې هغه پښتانه ځایان کړي ول چې له لوېدیځ څخه ئې د مشهد له شاوخوا څخه ورشړلي ول. دغه خلیزي پښتانه تر هغه زمانه پورې په دغه سیمه کښې اوسېدل څو چې ډېره نیان ئې نادرقلي افشار په برید کښې و ختیځ ته

ځني وتښتېدل. دغه کال ۱۱۵۱هـق ؤ.

تر یعقوب لیث سپاري وروسته ئې ورور عمرو لیث سپاري ځای ناسئ سو. دء غزني او کابل له رتبیل یا زنبیل شاهانو څخه ونیول. دوی اسلام و یادو کړو سیمو ته ورځپور کړ.

پښتانه یوه دودیزه قبیلوي ټولنه ده. هیڅ داسي معتبر سند او شواهد نسته چي کله دي یو کسب کار، مسګر یا ترکاڼ و قدرت ته رسېدلئ وي. په افسانوي داستانونو کښي به باز د پک پر سر کښېنستلئ وي او پک به بادشاه سوئ وي، دغسي نو چغال هم د لېوانو بادشاه کړل سوئ ؤ. کله چي د رنګیالي (رنګرېز) و خوم ته ورلوېدلئ ؤ. هغه ئې هم ګیدړه مشاوره وه چي دی ئې د لېوانو شاه کړئ ؤ.

څوک به ښایي ووایي چي خادم دین حبیب الله، د سقاو زوی، په خپلي بشپړي بې سوادۍ سره، بادشاه امان الله د افغانستان له اورنګ څخه ولاړ نه کړ، او په خپله ئې ځای ناستئ نه سو؟ هو، هغه د پښتنو په قبیلوي ارزښتونو کښي برخمن نه ؤ. بل دا چي بادشاه امان الله د تورکیې او جرمني سره سیاسي مناسبات لرل او دا چي له انګلیسانو څخه ئې استقلال اخستئ ؤ نو دی هم نور امیر نه بل لا بادشاه ؤ. نو انګلیسانو د شاه شېرعلي غوندي دی هم له تخت او بخته څخه محروم کړ.

یوه بله دغسي پېښه د یعقوب لیث سپاري په اړوند ده. دا چي دی صفاري یا مسګر بلل سوئ او په خپله بې وزلۍ پېژندل سوی دئ، او د دوی له توقع څخه خلاف ئې د ځان غوندي بې وزلانو لاس نیوئ کړئ نه ؤ. دا سره له دې چي د بادشاهۍ په دوران کښي ئې ډېري خزانې لوټ کړي وې.

بې وزلان، خواران، او ګدایان عموماً په ښارونو کښي وي. په کلیوالي ژوندانه کښي چي قبیلوي ټولنه وي، بې وزلان هغه څوک وي چي له بلي ټولني او ځایه څخه ورغلي وي. دغه کسبه یا کسب کاران وي لکه ښن (مسګر، آهنګر) او ترکاڼ وي. نور خلګ چي د ځایي قبیلې غړي وي، دوی مساوي حقوق لري. دوی خپله کلیوالي ملکیت مځکه هر کال ځله وېشي و چا ته د اوبمالۍ سرنۍ او و چا ته د پای مځکه په وېشنه کښي ور رسېږي. د کلي و سرغنه ته یو ټوکر مځکه تر نورو ډېره ورکول کیږي. هغه د دې له پاره چي مېلمه او مسافر به پر دء وي. دی به ئې پالنه کوي.

تر دغي وېشني دمخه ئې یو بل راز تشکیل لارء. هغه داسي چي ټولي مځکي ئې په ګډه سره کرلې. هر خېل یا زیي چي به مځکه په ګډه کرلې وه، د راشې اخستني پر مهال ئې و هر نارینه ته برابر شالۍ غنم ورکول. خو هغه هلک چي به اووء کلن سوئ ؤ هغه به نیم سر ؤ او نو نیمه اندازه غله به ورکول کېدله، او چي دوولس کلن سوئ به ؤ، نو به بشپړ سر ؤ او له لویانو سره برابره ونډه ورکول کېدله. و نیم سر ته د هغه نیمي ورکول کېدل. هغه چي به پوره سر ؤ، نو و جنګ ته هم لېږل کېدئ. ما چي به له کلیوالو څخه د دوی د نفوسو شمېر وپوښتئ، دوی به د هغو ملاتړو شمېر راکاوء چي د اړتیا یا عمومي جنګ په حالت کښي به و مرکزي حکومت ته ورلېږل کېدل.

**پایلامه:**

هغه تاریخي معلومات چي ښاغلي جهاني له بېلابېلو اخستیځونو څخه وراختستي دي هم ئې معلومات یو له بله ځله ضد ؤ نقیض دي، هم ئې دغه تضاد په یوء عبارت کښي لیدل کیږي. څوک چي له دودیزو قبیلوي ټولنو او د دوی له

دود او چال، او ارزښتونو څخه ناآگاه وي او د خپلو گډو وډو ښاري ټولنو قیاس له خپله فهمه سره سم، پر نورو باندي کوي، د دغسي اشتباهاتو مرتکب کیږي. نور د بلي زماني لوستونکي هم باور په کوي. رشتیا هم بله اصلاحي چاره ئې هم نه وي. د دوی له تضاد څخه سړی پوهېدای سي چي وراني چیري او څنگه ده؟ څوک چي د اړونده اجتماعي چاپېریال له شرایطو سره آشنا وي، او هم ئې اړونده معلومات تیت او پاشان موندلي او سره کښي ایستلي وي، هیله ده چي لږ و یا لا ډېرو صحیح نتایجو ته به رسېدلي وي.

په یوه دودیزه ټولنه کښي هیڅ کسبه یا کسب کار و لوړ منزلت یا مقام ته رسېدلای نه سي. دی که به هر څو غښتلئ جنگیالئ وي. په دغه اړوند دي زما د نورستان لیکني په سرې سره ولوستل سي.

نو داسي امکان نسته چي یو کسب کار او په سرې سره غل او غدو دي د یوې ټولني سرغنه سوئ وي، او هغه لا هم په دودیزه کلیوالي ټولنه کښي.

دا چي د سپار نوم، لکه بل هر چیري د مانا پوهېدني یا عادت له مخي معرب، صفار، کړء سوئ دئ چي د مسگر مانا لري نو یو مسگر و بادشاهی ته څنگه رسېدلای سي. دغه کار به په ښاري ذهنیت کښي څه نه څه یا لږ ؤ ډېر منونی وي، خو په کلیوالي ذهنیت او شرایطو کښي هیڅ امکان نه لري. د دې له پاره چي دغه لیکنه یا د ښاري ذهنیت سي بل ثبوت ئې دا دئ چي وایي دی و ښار ته تللئ ؤ، چیري چي دی د میاشتي په پنځلس درهمه مزدور سوئ ؤ. دغه ښار چیري ؤ او څه نومېدئ؟ د هیلمند د رادء په اوږدو په هر کلي او کلا کښي هر خېل یا زیي خپله مځکه په گډه کرله. د حاصلاتو پر مهال باندي و نارینه وو ته ټاکلې اندازه غنم یا بل هر څه حاصل ورکول کېدئ. تر دوولس کلن چي به څوک لوړ ؤ هغه به (سر) ؤ. بشپړه اندازه غنم ورکول کېدل. له اووء کلن څخه تر دوولس کلن پوري به هلک نیم سر ؤ. و هغه ته نیمه برخه غنم ورکول کېدل. دغسي هم و کسبه وو ته ټاکلې اندازه غنم د حاصلاتو پر وخت باندي ورکول کېدل. مراد مي دا دئ چي و کسبه وو ته چیري نقد دینارونه یا درهمونه نه ورکول کېدل.

بل واقعیت دا ؤ چي کسب کار سړی چي به هر څونده نامي ؤ، دء نه ډله جوړولای سوای او نه د شاهی او بادشاهی و مقام او حیثیت ته رسېدلای سوای.

دریېمه خبره دا ده چي وایي یعقوب لیث سپاري خورا سخي ؤ، وایي لس زره دیناره، سل زره او پنځه سوه زره دیناره ئې بخښلي ول. دغه څوک ول او ولي دغه لوی شمېر دینارونه وربخښل سوي ول. قیاساً ویلای سو چي دغه به د بېلابېلو رتبو سالاران او سپاه سالاران ول، څو دوی دغه مقدار پیسې پر خپلو جنگیالیانو باندي څله وېشلي وي. څه چي د خزانو لوټولو په باره کښي د یعقوب لیث په اړوند ویل سوي دي، هغه د لوی سکندر او نورو فاتحانو په باره کښي هم صدق مومي. هغوی زرونه پېغلاني او څواناني ښځي لا ولجه کړي وې.

ما ترمخه په ایر به توگه داسي نغوته کړې ده چي هر کلي د خپل نفوس په تناسب د مځکي یا اوبو لگولو په تناسب سره مکلفیت لارء چي ټاکلئ متناسب شمېر پلي او یا سپارء جنگیالیان ئې و مرکزي حکومت ته د اړتیا په صورت کښي استولي وي.

ما تر یعقوب لیث سپاري ډېر دمخه د رستم حالت درته بیان کړ چي هغه هم د دغه

هلمند ناوې (اريا روسپي) ؤ، او هم مي تر دې ډېر وروسته د تاغز د حبيب الله خان د شپېتو سپرو حالت دروښاوه. د ښادروان محمدګل نوري په "ملي هينداره" کښې هم د فتح خان برېڅي د شپېتو برېڅو داستان لوستلای سئ. دغه دواړي مخالاوي او پشالاوي پر دې باندي دلالت کوي چي يعقوب بن ليث (لايوس: زمری) چي د هلمند د سپار اوسېدونکئ ؤ، هم له خپلي قبيلې څخه شپېته سپارې لرل، دا دمخه تر هغه چي دې له نورو څخه د رستم غوندي د سيمي واک اخستئ وي، او د نورو سرغنه وي.

کښتنی هلمند يا ساکستان د مسلمانانو او کابل شاهانو تر منځ چي پر بست باندي ډېر جنګونه سوي ول، په ژمي کښې به سکزي شاهانو بست نيولئ ؤ او په دوبي کښې به بيرته رتبيل شاهانو ته بست په لاس ورغلئ ؤ. دوی، دواړو خواوو پر دې باندي روغه سره کړې وه، چي د بست واکوال دي مسلمان وي، خو واک دي ئې له کابل شاهانو سره وي. دغه کس به ښايي صالح نومېدئ چي دواړو خواوو منلئ ؤ. صالح چي به د بست واکوال ؤ، يا دی به ظاهراً مسلمان ؤ، خو په باطن يا اصالت کښې به د کابل شاهانو غوندي د دوی په دين ؤ. ځکه وايم چي يعقوب ليث د بست په نيولو کښې له دې سره جنګېدلئ ؤ. که صالح د زنبيل شاهانو له خوا څخه نه وای، نو ولې و دوی ته يا د دوی و خوا ته وتښتېدئ؟

دا چي يعقوب بن ليث (زمري) به څنګه د کښتني هلمند يا کښتني آرياوسپې ملوک الطوايف متحد او د ځان ملګري کړي ول، په اوس کښې ئې له ما سره هيڅ شواهد او دلايل نسته. دې چي هلمنديان د ځان ملګري کړي ول، نو ئې د هرات، ختيځ ايران او منځني افغانستان پښتانه لومړی د ځان تابع کړي او بيا د کابل شاهانو په مقابل کښې د ځان ملګري کړي ول. دې به هم هغسي کار کړئ ؤ لکه احمدشاه بابا چي له نورو پښتني قبايلو سره کړئ ؤ.

د دغسي نسبتاً اوږدې مخالا په پايلامه کښې خود به لوستونکي هم پوهېدلای سي چي له يعقوب ليث Laius سره به ملګري په لومړي سر کښې د دې قبيلوي ياران ول او دوی به هغه ځوانان ول چي کورنيو به ئې د يعقوب ليث له کورنۍ سره غله او د مځکي نور حاصلات په مساويانه ډول سره وېشل. خو د يعقوب ليث و کورنۍ ته به ئې د مشرتابه له اسيته څخه څه غله او نور څه امتيازات ورکول. څو د مشرتابه او مېلمه پالني حق ئې پر ځای سوئ وي. دې او کورنۍ به ئې تر نورو ډېري غيلي او بودګان لرل.

و دغه ته ورته مشرتوب او سرغنه توب تاسي د فتح خان برېڅي او د شپېتو يارانو په داستان کښې هم لوستلای سئ. ښادروان محمدګل نوري ئې بيان په ملي هينداره کښې په خوږه پښتو سره وړاندي کړئ دئ. د دغو ځرګندونو په رڼا کښې به تاسي د سرغنه يعقوب ليث ملګري ياران وبولئ که عياران؟

هغه ټول اقتباسي عبارتونه چي تاسي د ښاغلي جهاني په اخستو بيانونو کښې لوستلي دي، تاسي هم په خپله قضاوت ور باندي کولای سئ. دغه له يوې او بل له خولې څخه اورېدل سوي دي. د غلط فهمۍ لوی او زبده عامل ئې له بېلابېلو کلتوري يا ثقافتي ليد نوني څخه ورته کتنه ده. د دوی فهم ئې بېل ؤ. ځکه نو دمخه يو مخيزه غلط فهمي ځني پېښه سوېده. دغه چي هغه مو داسي ده، نور تاريخي واقعات او بيانونه به مو ئې لا څنګه وي؟

ځېړندوی شېرشاه رشاد

# د احمد شاهي دربار ځیني لیکونه

په لسمه او یوولسمه هجري پېړیو کي د افغانستان په لوېدیځ کي مغولي متعصبه کړیو، په شمال کي د داړه مارانو په بڼه خانخاني او په ختیځ کي د حیله ګرو مغولو نجیسي منګولي، هغه فتنه پاڅوونکی مثلث[1] وو چي د دغو مستبدو مستعمرو اربابانو په لاس زموږ د ګران هیواد په ګوټ ګوټ کي د نفاق او شقاق لمبې بلي کړي سوي وې، قبیلي ئې له یو بل سره او په خپلو منځو کي سره جنګولې، د قبیلو د سر و د فهم سړي به ئې یا وژل او یا به ئې له هېواده شړل. ګرده خلګ ئې د خانخانۍ په رنځ اخته کړي ول.

د پردو لاس له خپله سره لنډول هغه مفکوره وه، چي د هر با احساسه او هیواد پاله په زړه کي ورګرځېده، خو له ګونجلیک او کړکېچن حالته څخه د وتلو موری چا ته نه ښکارېده. د الله تعالی پېرزوینه ده چي د هېواد مدبر او دراک انسان میرویس نیکه رحمة الله علیه په لومړي سر کي د صفوي ظالمانو او شرپسندو سرونه په خاورو ور ومروړل او په دوهم ګام کي بیا د هیواد بل مجاهد، د لوړتیا او دبدبې، د فضل او کمال څښتن لوی احمد شاه بابا رحمة الله علیه دې ته وګومارل سو چي د افغانانو شو په شو او تاک له تاکه بهیرونه د یوه مزله لوري ته رهي کړي څو یو د بل مهتمم او مکمل سي. (۵ -۲ مخ)

میلسون هم په خپل کتاب "The history of Afghans" کي دې خبري ته اشاره کوي او کاږي: "د ده لوړتیا دا وه چي د افغانانو قبیلې ئې متحدي او منظمي کړلې".

تر ده د پخوانیو په پرتله د ده د تدبر او درایت ښېګڼه په دې کي ده چي ده تر هر څه وړاندي غوښته په هېواد کي دننه نظم و نسق راولي. علامه سید جمالدین افغان په (تتمة البیان في تاریخ الافغان) کي په دې اړه کاږي: "له پردي واک (تسلط) څخه د خلاصون حتمي او لازمي ګام ئې تر هر څه وړاندي د هیواد په دننه کي انتظام ګاڼه." (۳ - ۷۲مخ) او همداسي ئې هم وکړه کله چي ئې په هیواد کي پښې ښه ونجتلې او له دننه ئې زړه پوره سو، نو بیا ئې و نورو خواوو ته لښکر وخوځاوه.

لوی احمد شاه بابا د افغانستان د نامه، پت او عظمت د بیا راژوندي کولو له پاره د خپلي ټولني پر کلیدي عناصرو باندي ټینګار کاوه، هغه د افغاني ټولني په قبیلوي نظام کي قبیلو سردارانو او مشرانو ته ډېر اهمیت ورکاوه او د نظام د ټینګښت له پاره ئې اړین عنصر ګاڼه او پام ئې هم ورته کاوه. د پاچاهۍ نور عناصر ئې لښکر، خزانه او صادق او فداکار ملګري ګڼل[2].

لوی احمد شاه بابا د خپلي پاچهۍ د ستنو د پیاوړتیا له پاره د نورو تدابیرو پر څنګ په هېواد کي دننه او دباندي ځیني مراودي او

مراسلې هم په خورا دقیقه توګه پاللې او د ځینو داسې سترو هېوادو او ځواکونو لیکونه د ده په نامه په دې عصر کې رالېږل سوي دي چې د لوی احمد شاه بابا د امپراتورۍ اغېزې د نړۍ په یوه معینه جغرافیه کې خورا په ښه توګه ښیي.

د احمدشاه بابا له خوا لېږل سوي او یا ده ته رالېږل سوي لیکونه چې ما کتلي دي. د موضوع له پلوه ئې پر څلورو برخو وېشلای سم:

۱ - لومړۍ ډله هغه لیکونه دي چې د پوځي موخو او مقاصدو له پاره لېږل کېدل، چې په هغو کې مرهټې سپهسالار بهاو ته د لوی احمد شاه بابا هغه لیک چې تر جنګ وړاندي د سولې او روغې جوړې وړاندیز ورته کوي، خو مغروره بهاو د سولې د پیغام په جواب کې ورته کاږي:

"... که تر کابله پورې ټوله سیمه موږ ته راپرېږدې، سولې ته به غاړه کښېږدو"(۳).

دې ته ورته لیکونه چې پوځي مسایل پکښې رانغښتي دي ډېر دي.

۲ - دوهمه ډله هغه لیکونه دي چې روحاني اړخ لري او یا په سیاست کې د روحاني سیوري څرک پکښې لیدل کېږي، په دې ډله کې د میا فقیرالله جلال آبادي رحمة الله علیه هغه څلور لیکونه (۶۶ -۵۷ -۲۹ -۱۸ ګڼه) چې د لوی احمد شاه بابا په نامه دي، درې لیکونه د شهزاده بسلیمان په نامه، دوه لیکونه د احمدشاهي عصر د صدراعظم اشرف الوزراء شاه ولي خان بامیزي په نامه دي. په دې ډله کې د څمکنو د میا عمر رحمة الله علیه او د هند د شاه ولي الله دهلوي لیکونه هم راتلای سي.

۳ - درېیمه ډله هغه لیکونه دي چې د خواخوږۍ او تسلیت له پاره لېږل سوي دي، له دې ډلې څخه د پاني پت په ستره غزا کې د مرهټو د مشر واکمن بالاجي راو په نامه د هغه د زوی (بسواس) او تر بور (سداشینو بهاو) د وژني د تعزیت پاڼه ده، لوی احمد شاه بابا د دوی پر ځوانیمرګۍ د افسوس پر څنګ دا هم زیاتوي:

"...ما د سولې پېشنهاد دوی ته وړاندې کی، دوی ځوانان ول ویني ئې تودې وې زما د سولې بڼغ ئې و نه مانه"(۴).

۴ - څلرمه ډله هغه لیکونه دي چې د سیاسي – پوځي موخو له پاره استول سوي او رالېږل سوي دي، په دې ډله کې په هند کې د نجیب الدوله امرخېل، څو هندو راجګانو د لیکونو په څنګ کې د امام الهند حضرت شاه ولي الله دهلوي هغه لیک چې له کفارو څخه د برمته وو او بې وزلو مسلمانانو د خلاصون له پاره لوی احمد شاه بابا او لښکر ئې د هند وخوا ته وربولي.

په دې څلرمه ډله کې د بریتانوي ایسټ انډیا کمپنۍ لیک لوی احمد شاه بابا ته هم راتلای سي چې په دې لیک کې احمد شاه بابا ته د انګریزانو له خوا د ستر ټولواک (شهنشاه) خطاب سوی دئ او د ده رضائیت او خوښه غوښته سوې ده. متن ئې په دې ډول دئ:

"If it should be shahenshah pleasure, will be escorted by some troops to Delhi."

ژباړه: که د ستر ټولواک (شهنشاه) خوښه وي، موږ به شاه عالم د یوې پوځي بدرګې سره ډهلي ته درولېږو(۵).

په دې ډله کې بل لیک د ختیځ ترکستان یا لوېدیځ چین د خوقند د خانۍ د شیخ الاسلام او اقضی القضات هغه لیک دئ چې د اشرف الوزراء پر لاس د لوی احمدشاه بابا حضور ته وړاندي سوی دئ. متن ئې په دې ډول دئ: زما د رسالت مراد د دواړو هیوادو (داحمد شاهي امپراتورۍ او د خوقند د خانۍ) تر منځ د اتفاق راوستل دي، څکه نو زه غواړم په یوه مناست

ټاپې کې په خیر سره ستاسې هیواد ته درسم، هیله ده زما دغه غوښتنه ومنله سي[۲]".

انګریزي ختیځپوه الفنسټون "د کابل سلطنت بیان" نومي اثر کې د چین دربار ته د احمد شاهي دربار د استازي لېږل بیانوي او د دغه استازي د سفر شرحه یا سفر نامې یادونه هم کوي، خو دهغې کومه نسخه په لاس ورغلې نه ده.

د ختیځ ترکستان او بدخشان پر سر د لوی احمدشاه بابا د دربار او چین تر منځ لفظي شخړې د روسیې د پېترزبورګ دربار هم و دې ته وهڅاوه چې د ۱۷۶۳م کال د نوامبر پر ۱۶ (۱۰جمادي الثاني۱۱۷۷ هـ.ق) د دباندنیو چارو وزارت یو سلطنتي مامور بګدان اسلانوف احمدشاهي دربار ته ولېږي چې د ۱۷۶۴م د سپتمبر پر ۲۲ هرات ته راورسېدی. کندهار ته ځکه راتېر نه سو چې لوی احمدشاه بابا له افغاني لښکرو سره د سکهانو د ځپلو له پاره هند ته رهي وو[۵]".

علامه رشاد په خپله یوه مقاله کې په دې اړه کاږي: "... روسیې غوښته لوی احمد شاه بابا د چین د استعمارګر شهنشاه ځیانګ لونګ سره نور هم جنګ ته وهڅوي"[۵].

په دې ځلرمه ډله کې تر ټولو اهم او اوږد لیک د عثماني خلافت سلطان درېیم مصطفی په نامه دئ. په دې لیک کې د سیمې پر تاریخ، د شخصیتونو پر ځانګړنو، او د حالاتو پر عواقبو رڼا اچوي، په خطاب کې عثماني خلیفه ته د ورور خطاب کوي او له ځان سره ئې مساوي ګڼي او عثماني خلیفه ته خپل واک او قدرت ښیي او له عثماني خلافت سره ښه او نېک اړیکې غواړي.

د لوی احمدشاه بابا، دوهم شاه عالم، د روهیله پښتنو او راجپوتو سردارانو تر منځ لېږلي او رالېږلي لیکونه په "مراسلات احمدشاه دراني" کې راټول دي چې خطي نسخه ئې د امرتسر د خالصه کالج او د پټنې د خدابخش په کتابتون کې خوندي ده[۵].

په دې ګردو پورتنیو فکتونو او مستندو یادونو ما غوښته د دې درنې څېړنغونډې ټولو ښاغلو ګډنوالو ته د لوی احمدشاه بابا هغه فکري نوښت او خوځښت وښیم چې لوی احمد شاه بابا نه یوازې د خپلې توري په قوت د افغانستان جغرافیایي حدود ارت کړل، بل لا ده د سیاسي مراودې او مراسلې له لارې ۲۷۰ کاله وړاندې د خپلې ټولواکۍ (امپراتورۍ) د اغېزې ساحه په ختیځ کې د چین تر درباره پورې، په شمال کې د پیترزبورګ تر درباره پورې، په لوېدیځ کې د عثماني خلافت تر دارالسلطنې پورې او په جنوب - ختیځ کې د لوی هندوستان تر مسلمانانو او هندو مظلومانو او په هند کې د بریتانیا د لوی پوځي قوت ایسټ انډیا کمپنۍ پورې رسولې ده.

د دغو لیکونو لړۍ دا هم ښیي چې لوی احمد شاه بابا یوازې د جنګ د ډګر اتل نه وو بل لا یو مدبر ستراتیژیست او د سیاست په رمزونو پوه وو.

**مأخذونه:**


۱. عطایي، محمد ابراهیم، د افغانستان پر معاصر تاریخ یوه لنډه کتنه، ۱۳۸۰، میوند خپرندویه مرکز.

۲. رشاد، عبدالشکور، د پاني پت قهرمان...، ۱۳۷۰، د افغانستان د علومو اکاډیمي، د پښتو څېړنو نړیوال مرکز.

۳. افغان، سید جمال الدین، تتمه البیان في التأریخ افغان، پښتو ژباړه، ۱۳۹۰، کندهار.

۴. د لوی احمد شاه بابا یاد، ۱۳۸۲، د افغانستان د علومو اکاډیمي.

۵. رشاد، عبدالشکور، د احمدشاه بابا کتاب ښوود، ۱۳۹۲، کندهار، علامه شاد اکاډیمي.

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# په پښتو او هندو-آریایي ژبو کښې د (و) ډوَلوُنه

په دې مقاله کښې د پښتو رغېږوهنې (phonology/ phonetics) د یوې خورا مهمې او مُبرمې مسألې په باره کښې خبرې کوو، چې پر خپل ټول ارزښت او ضرورت سربېره تر اوسه له پامه لوېدلې ده. دا ارزښتناکه او مُبرمه موضوع په پښتو کښې د «و» د بېلو بېلو ډوَلو پېژندنه او په لیکنه کښې د هغو سم او سهي کارول دي. بېله شکه، دا خبرې د پښتو د اِملایي سیستم یا لیکدود (orthography /script) د لا بشپړتیا او پرمختګ په لار کښې یوه مقدماتې طرحه ده، چې د پښتو باصلاحیته ژبپوهان او نور ذوقمندان یې باید د خپلو علمي او ذوقي نظریو په رڼا کښې سَرَه او ناسَرَه سره بېل کي.

لکه څنګه چې د «يې/ یاء » ګانو بېلابېل ډوَلونه او ځانګړې نخښې په پښتو لیکدود کښې لوی او اساسي ارزښت لري، د «و» و مختلفو ډوَلو ته د جلا جلا تورو یا نخښو ټاکل او هر توری یا نخښه پر خپل سهي ځای کارول هم د پښتو لیکدود د اصالت او بشپړتیا او په نتیجه کښې د پښتو ژبې د اسانۍ له مهمو او مُبرمو مسألو څخه ګڼل کیږي.

تصور وکئ، که «نجلی» د «نجلی»، «سرِي» د « سرِی» او مستې (ماست، دهې) د مستې (خوشالي، نشه، بې هوښي) په بڼه وکاږو، لوستوُنکي د جوُملو په مانا اخیستنه کښې له څونه تېروتنو او ذهني کړاوو سره مخامخ کیږي؟ د «نجلۍ» پر ځای د «نجلی» په لیکلو سره، مؤنثه صیغه په مذکره اوړي. د «سرِي» پر ځای د «سرِی» په کښلو سره، د جمعي حالت په مفرد بدلیږي. دغه رنګه که مستې (ماست، دهې) د مستې (خوشالي، نشه، بې هوښي) په بڼه و لیکو، د کلیمو په مانا او مفهوم کښې لوی التباس پېښیږي. سربېره پر دې، په پښتو کښې ځینې نور باریک او حساس توپیرونه هم لرو، چې که په لیکنه کښې سم او دقیق پام پر و نه سي، د جوُملې یا بیت په مانا اخیستنه کښې سختې څه چې مغالطه او ګډوډې پېښیږي. له دغه راز حساسو او ظریفو التباسو څخه یو هم د مذکر مفرد شخص دېاره د فاعلي ضمیر او کومکي فعل تر منځ ګډوډي ده، چې دلته یې یو مثال وړاندې کیږي:

دی کور ته تللی دی.

په دې جوُمله (جمله) کښې لومړی «دی» د مذکر مفرد شخص دېاره فاعلي ضمیر دئ؛ په داسې حال کښې چې دوهم «دی» کومکي فعل دئ.

اوس نو که پورتنۍ جوُمله په لاندې ډوَل ولیکو ، د ضمیر او مرستندویه فعل تر منځ په اسانۍ سره توپیر کولای سو:

دی کور ته تللئ دئ.

په پښتو ادب کښي هم د ضمیر او فعل د دغه راز التباس پراخ مثالونه لرو، چي کې (که يې) په ليکنه کښي سهي توپير و نه کو، لوستؤنکو ته د بيت په مانا اخيستنه کښي لوی سرخوږی جوړوو؛ د مثال په توګه د پښتو عاليمقام عرفاني شاعر - علي محمد مخلص (تر ۱۰۶۹ هـق پوري په يقين سره ژوندی) په يوه ميسره کښي دی (ضمير) او دئ (فعل) داسي راوړي دي:

دی قديم، عظيم درياب دئ، کُل عالَم پر ده
حُباب دئ
دی تطهير د هر ناپاک شه، پاک صفت غواړم
له پاکه

بل ځای داسي وايي:

دی اَلطف دئ په لطيف کښي ئې ځای وکه
حـــق الطف، زړه لطيف ياد په کـتابونه[1]

تر دې چي تېر سو، د پښتو په ديواني ادب کښي داسي بولګې/بېلګې هم خورا ډېري دي، چي د يوه بيت په عينِ ميسره کښي د دريم او دوهم شخص ضميرونه کار سوي يي (وي). اوس نو که د دې دوو بېلو صيغو د جلا کولو دپاره له بېلؤنکو نخښو څخه کار وانخيستل سي، لوستؤنکي په لوی ربړ او عذاب اخته کيږي؛ لکه د علي محمد مخلص په دغو دوو بيتو کښي:

حق جوهر ته ئې عَرَض يې!
دی کـاغد ته پرې خضيبه
*** *** ***
ته د کُل مخلوقات رب هم ئې رازق يې!
د دولت پرورده تل اُمـــيد عــــفا ته[2]

په دغو بيتو کښي «ئې» و غايب شخص/ شي (مخلوقات) او «يې» و دوهم شخص يا مخاطب (رب) ته اشاره ده. که د دې دوو بېلو ګرامري حالتو د تشخيص او تفريق دپاره له بېلو نخښو څخه کار وانخلو، د ميسرې، بلکي پؤره بيت په سم لوستلو او مانا اخيستلو کښي له لوی مشکل او تکليف سره مخامخ کيږو.

په پښتو کښي د داسي ظريفو او باريکو توپيرو شمېر ډېر زيات دئ، چي د ټولو شننه او سپړنه، بلکي ساده يادونه هم د دې کوچنۍ مقاله ګۍ تر حوصلې وتلې خبره ده. البته، له دې څو ګوتو په شمار مثالو څخه په ډاګه دا نتيجه تر لاسه کېدای سي، چي په پښتو ليکدود (رسم الخط) کښي و بېلابېلو ږغو يا بېلو بېلو ګرامري حالتو ته د جلاجلا تورو او نخښو کارول، د ليکنو د سمي لوستني او دقيقي مانا اخيستني له مهمو او مُبرمو اړتياوو او د ژبې - ادب د پراختيا او پرمختيا په کار کښي له لويو او ارزښتناکو ګامو څخه شمېرل کيږي.

لکه څنګه چي د پښتو «ياء» بېل بېل ږغونه د جلا جلا تورو په وسيله تمثيليږي؛ او دې کار د لوستؤنکو پېچومي تر ډېره حده حل کړي دي، د «و» مختلف ږغونه هم بايد ارؤمرؤ د خاصو او متفرقو نخښو په وسيله اِفاده سي؛ ځکه د «و» يو توری بالکل د دې فونيم د بېلابېلو ډؤلو يا بڼو استازيتوب نه سي کولای. و بېلابېلو ږغو ته د يوه توري يا يوې نخښې کارول، کټ مټ داسي مانا لري لکه چا ته چي د /کؤرتؤ/ قُروتو او قندو تر منځ هيڅ پَرک (فرق) نه ښکاري يا آس و ټټو و خر و کچره/ غاتره ګرده د حيوان په نامه يادېي. دا د راکيټ ساينس نه، بلکي پؤلي او پټي غوندي اسانه او

روښانه خبره ده، چې راتلؤنکي ټکي پر مانا سربېره د «و» په ږغ او وينګ کښې مځکه او اسمان پَر ک لري:

نؤر / nūr/ [په مشدد معرؤف يا لنډ «و»]: (روڼا/رڼا، روښنايي).

نور/ nor/ [په مجهول يا اوږده «و»]: (پاته/پاتي، باقيمانده).

سؤر / sūr/ [په مشدد معرؤف يا لنډ «و»]: (سؤر رنګه، سُرخ، قِرمِز).

سور/ sor/ [په مجهول يا اوږده «و»]: (۱ هپور، سوار، راکِب. ۲ - پسور، پلنوالی، عَرض).

زوَر /zwar/ [په نرم يا سپک معرؤف/ لنډ «و»]: (فتحه)

زور / zor/ [په مجهول يا اوږده «و»]: (قوت، قوه، طاقت، ځواک، نيرو).

لؤر /lūr/ [په مشدد معرؤف يا لنډ «و»]: (ښځينه بچی (اولاد[۳])، د زوی په مقابل کښې، دختر).

لور /lor/ [په مجهول يا اوږده «و»]: (۱ لوری، پلو، خوا، طرف. ۲ - د ريبلو آله، داس).

ډَوَل /ḍawl/ [په نرم يا سپک معرؤف/ لنډ «و»]: (۱ - طريقه، لار، بڼه، شکل. ۲ - نوع، قسم، جنس. ۳ - فېشن، ښايست او داسي نور).

ډول /ḍol/ [په مجهول يا اوږده «و»]: (۱ د پښتني موسيقی مشهوره او مروجه آله. ۲ - د جهر او خبرتيا وسيله. ۳ - سلواغه/ سولاغه، سطل/ ستل، ډوله يا ډولچه يې تصغيره بڼه).

کله چې د سر په سترګو د «و» په ږغ او ادا کښې دا واضح او روښانه توپير ګورو، بيا نو ځنګه کېدای سي، دواړه په يوه توري يا يوه نخښه وليکو؟ په نؤر nūr (روڼا/ رڼا، روښنايي) کښې کار سوئ «و» د پښتو ژبپوهانو په اثارو کښې د معروف يا ځرګند «و» په نامه ياد سوئ دئ. په دې بڼه کښې لکه ځنګه چې له نامه ځخه يې ښکاري، د «و» ږغ روښانه يا ځرګند دئ. سؤ/ شؤ، ځؤ، نؤ (ناف)، محکؤم، مالؤم ... يې ځيني نور مثالونه دي. په نور nor (پاته/ پاتي، باقيمانده) کښې استعمال سوي «و» ته د مجهول يا اوږده «و» نوم ورکړل سوئ دئ. له مجهول ځخه يې مخسد (مقصد) دا دئ، چې د «و» دا ډَوَل اواز د معرؤف «و» په پرتله روښانه او واضح نه دئ. په دې وروستيو کلونو کښې د مجهول «و» پر ځای د اوږده «و» نوم هم باب سوئ دئ، چې د دې حقير په قاصر نظر ښځايه او نامناسبه نوم اېښوونه نه ده؛ ځکه په دغه راز ټکو کښې د «و» ږغ اوږد ادا کيږي؛ نور مثالونه يې کور، مور، خور، ورور، لور، اور، ګور، شور، پېغور او داسي نور دي. د دې عاجز په نېز، که چيري و دا ډَوَل «و» ته د مجهول تر ځنګ د اوږده «و» نوم کاروو، بيا نو معروف يا ځرګند «و» ته د لنډ «و» نوم هم ښځايه او نامناسب نه بلل کيږي. په دې چې د اوږده يا مجهول «و» په پرتله لنډ ادا کيږي. ښېله شکه د دې يا هغه نامه اېښوول د بحث او اندېښنې وړ خبره نه ده. مهمه او اساسي خبره دا ده، چې د «و» د دې دوو ښېلو ږغو دپاره بايد په پښتو الفبې کښې ارؤمرؤ دوه

ښېل توري یا دوه جلا ګرافیمونه ولرو؛ او هر توری پر خپل سهي او اصلي ځای استعمال کو.

په افغاني ژبپوهانو او لیکوالو کښې لوی استاد - اروانباد علامه عبدالحي حبیبي (۱۲۸۹ش/ ۱۹۱۰ع -۱۳۶۳ش/ ۱۹۸۴ع) له نن څخه پېنځه اویا کاله دمخه په خپل ارزښتناک اثر «سپېڅلې پښتو» کښې د اوږده او لنډ «و» په لیکلو کښې و دې توپیر ته کلک پام کړئ ؤ؛ معروف یا لنډ واو یې د ساده «و» ؛ خو مجهول یا اوږد واو یې پر ساده واو سربېره د یوې کوچنۍ دوښاخي نخښې په وسیله تمثیل کړئ دئ، چې له دغه شکل سره ورته والی لري: «ۏ»[۴]. فاضل استاد - اروښاد علامه عبدالشکور رشاد (۱۳۰۰ش / ۱۹۲۱ع - ۱۳۸۳ش / ۲۰۰۴ع) هم د «پټي خزانې» په دوه جلدي فرهنګ کښې دا معقوله او علمي لار پاللې ده[۵].

په پښتو الفبې کښې اوس د «ۏ» او «و» دوه جلا جلا توري یا نخښې لرو، چې په اسانۍ سره یو د معرۏف یا لنډ او بل د مجهول یا اوږده «واو» پر ځای کارېدای سي. په ډېري ډېري خواشینۍ سره باید و وایو، چې د معروف او مجهول «واو» تر منځ دا توپیر او هر یوه ته د جلا جلا توري استعمال نه یوازي زموږ د تازه کاره ژورنالیستانو، لیکوالو او څېړونکو، بلکي هغو کسانو په لیکنو کښې هم نه لیدل کیږي، چې «علمي» القاب او عنوانونه یې د چا خبره په څو کسانو نه وړل کیږي؛ د پښتو ژبپوهنې په پراخ قلمرو کښې پر هیچا تن نه ورکیږي.

هغه تش په نامه پوهاند، ډاکټر او ماسټر، چې نۏر nūr (روڼا/ رڼا، روښنایي) او نور nor (پاته/ پاتې، باقیمانده) په یوه راز «و» کاږي، ما ته کټ مټ هغه چا غوندي ښکاري، چې د مځکي او اسمان تر منځ پَرک نه سي کولای. زموږ هوښیار او دراک لوستۏنکي د سر په سترګو ګوري، چې د «و» د دې دوو ږغو تر منځ پر مانوي (معنوي) التباس سربېره د فونیټیکس یا ږغپوهنې له لحاظه هم څونه لوی او ژور توپیر سته؟! دا خو نه څه نوې خبره ده؛ او نه هم راکټ ساینس غوندي ګرانه او پېچلې خبره، چې یوازي یې فزیکپوهان او ساینسپوهان په مانا پوهېږي، بلکي د پښتو ژبپوهنې زړه او منلې خبره ده، چې پر ژبپوهانو او ادبپوهانو سربېره زما په شان عامو او لږ لوستو کسانو ته هم لمر غوندي روښانه ده. د اریانۍ او خواشینۍ وړ خبره ده، چې بې څو معدودو کسانو ولي زموږ زیاترو پوهاندانو، ډاکټرانو او ماسټرانو تر اوسه و دې ساده، روښانه او منلې حقیقت ته ځانونه ناګاره اچولي دي؟!

په لیکنه کښې د نۏر nūr (روڼا/ رڼا، روښنایي) او نور nor (پاته/ پاتې، باقیمانده) تر منځ پَرک کول د پښتو ژبې، خاصتاً پښتو لیکدود د بنسټ او تاداو حیثیت لري. که مو په دې تاداو اینښوولو کښې بې غوري او بې پروایي وکړه، بیا خو د پښتو دېوال تر اسمانه پوري کوږ خېژي. ښځایه یې نه دي ویلي:

خشتِ اول گر نهد معمار کج
تا ثُریا می رود دیواز کـــــج

**ایا په پښتو کښي یوازي دوه «واوه» دي؟**

ژبپوهان پښتو ژبه د هندو - اؤرؤپایي ژبو (Indo-European Languages) له غټې کورنۍ څخه د ختیځو ایراني ژبو (Eastern Iranain Languges) یا هندو - ایراني ژبو (Indo- Iranian Languages) یا په عام او لنډ ډول آریایي ژبو ( Aryan Languages) په ډله کښي شماري[٦].

دا چي پښتو ژبه د هندو - اؤرؤپایي، هندو - ایراني یا مختصراً آریایي ژبو په کمه خاصه او مشخصه ډله پوري اړه لري، د دې لنډکۍ مقالې د څېړني او شنني موضوع نه ده. په دې مقالګۍ کښي یوازي د دې ټکي یادونه کافي ګڼو، چي پښتو ژبه د خورا ډېرو کلیمو په ایتیمولوژیک، سیمانتیک او فینالوژیک جوړښت کښي له دوو لرغونو آریایي ژبو (سنسکریت او اوېستا) سره نیژدې او مزبوت اړېکی لري. دا ټینګ او پیاوړی اړېکی له یوې خوا د پښتو لرغونتیا او له بلي خوا تر ډېرو اوږدو او پېچلو زماني پړاوو وروسته د دې ژبې اصالت او سپېڅلتیا زباتیي. کله چي د سنسکریت، پراکریت، هندي او ځینو نورو هندو - آریایي ژبو و ړغیزو خصوصیتو ته په ځیر او غَوَر وګورو، په ډېرو ړغو کښې له پښتو سره بشپړه یورنګي او برابري مومؤ. البته، دا همرنګي او برابري څه خودبخودي او ناڅاپي خبره نه ده. هندو - آریایي او هندو - ایراني، په تېره بیا د هغو شمال - ختیځي ژبي ګرده په ګډه د هندو - اؤرؤپایي ژبو د لويي او پراخي کورنۍ نه بېلېدؤنکي ښاخونه دي، چي په خورا ډېرو برخو کښي مشترک اړخونه او خصوصیتونه لري. د دغو ژبو د ړغیزو اړخو او خصوصیتو د همرنګۍ او همشکلۍ بشپړه شننه خورا اوږده او مفصله مسأله ده، چي په دې لنډکۍ مقاله کښې هیڅکله حق نه سي ادا کېدلای. له دې خاطره نو د ډېرو لنډو او سرسري توضیحاتو په وړاندي کولو سره یوازي په پښتو او هندو - آریایي ژبو کښي د «و» د بېلابېلو ډوَلو په یادونه او پرتله کولو بسنه کو؛ او اوسنۍ دېوناګري (devanāgarī) لیکدود د دې مقایسه یي څېړني بنسټ ټاکو؛ ځکه پر سنسکریت، پراکریت او هندي سربېره زیاتره هندو - آریایي ژبي په ناګري (nāgarī) یا لرغوني دېوناګري لیکدود لیکل سوي او تر اوسه هم لیکل کېږي. دې لیکدود د هندو - آریایي ژبو او پښتو ګډي ړغیزي ځانګړتیاوي په خورا دقیق ډوَل ساتلي او تمثیل کړي دي.

په دېوناګري لیکدود کښي د «و» پینځه بېل ړغونه ګورو، چي پینځه سره یې د پښتو د «و» له بېلابېلو ړغو سره پؤره همرنګي او هماهنګي لري. د دېوناګري لیکدود له دغو پینځو ړغو څخه څلور ړغه کله د کلیمو په سر یا سېلابیکه (syllabic) بڼه، کله د کلیمو په منځ یا سېلابمنځي (Intra-syllabic) بڼه او وروستی واول وزمه یا شبه واول (semivowel) ړغ یې همېشه په سېلابیک شکل کارېږي[٧]. راسئ په راتلونکو کرښو کښي اول په دېوناګري لیکدود کښي د «و» بېلابېل ړغونه او مختلف شکلونه په ځیر وګورو؛ او بیا یې هر ډوَل د پښتو «و» له بېلو بېلو ډوَلو سره پرتله کو:

۱) ऊ:

د «و» دا ږغ په سېلابیکه بڼه د دېوناګري په فونیټیکه الفبې کښې د «u» په نخښه تمثیلیږي؛ لکه په دغو ټکو کښې:

(لمسول، پارول ukasānā =उकसाना)

(سوغات، تُحفه، بېلګ، ډالۍ उपहार
(upahāra/ upahār =

(ایشول ubālanā =उबालना)

د «و» دغه ډوَل د کلیمې په منځ یا سېلابمنځي (Intra-syllabic) حالت کښې د هغې کښتنۍ (subscript) وړغندي وزمه نخښې په مرسته افاده کیږي، چي خوله یې وکیږ یا چپه لوري ته خلاصیږي (ु)؛ لکه په دغو ټکو کښې:

( ځرَه، جَرَه، غیرمتأهل कुँवारा /कुँआरा
(kumāarā/ kumvārā =

( نایاب، نادر، نه میندونی/ نه مؤندؤنی दुर्लभ
( durlabha/ durlabh =

( ناوړه پېښه، حادثه، سانحه दुर्घटना
(durghaṭanā =

د دېوناګري لیکدود دا «و» د پښتو له هغه نرم یا خفیف «و» سره یو شی دئ، چي په پاړسي کښې معمولاً د عربي پېښ په وسیله افاده کیږي؛ لکه ګودر، کونجی، غونډۍ، کوځی،کوزه،کوځه، کوچنی، ګوته، خوشال، خوښ او داسي نور. په پاړسي کښې ګودر، غونډۍ او داسي د ګدار، غُندی او داسي نورو په ډوَل کاږي. زوَر، زېر، پېښ او داسي نور د عربي لیکدود نخښې دي، په پښتو، پاړسي او داسي نورو آریایي ژبو کښې ځای نه لري. دا ژبې باید دېوناګري لیکدود غوندي د پېښ پر ځای د «و» له یوې جلا او خاصي نخښې ځخه کار واخلي. زموږ پلرو او نیکو پخوا پر عربي او پاړسي ټکو سربېره خپل سوچه پښتو ټکي لکه «ګوته»، «غوندي»، «غونډ» او داسي نور هم د «ګته»، «غُند» او «غُنډ» په بڼه کښل. له نېکه مرغه اوس ښایسته ډېري کلیمې د عربي او پاړسي لیکدود د کورکورانه تقلید پر ځای د پښتو په سهي او علمي املا کښل کیږي. دا لار باید نوره هم عامه او پراخه سي. په بله وینا، هر څه باید کرار کرار په داسي بڼه وکښل سي، چي زموږ د ژبې له ږغیزو اصولو او موازینو سره سمون او برابري ولري.

۲) ऊ:

د «و» دا ږغ د دېوناګري په فونیټیکه الفبې کښې د «ū» په نخښه افاده کیږي؛ لکه په دغو سنسکریت -هندي ټکو کښې:

( لوړ، جګ، رفیع، عالي، لوی، ارزښتناک
( ūṁcā =ऊँचा

(اوښ) ऊँट / (ūṁṭa /ūṁṭ) ऊंट ūṇṭa
/ūṇṭ =

( پورته، لوړ، عالي ऊपर= ūpara/ ūpar)

د «و» دغه بڼه د کلیمې په منځ یا سېلابمنځي (Intra-syllabic) حالت کښې د هغې کښتنۍ (subscript) وړغندي وزمه نخښې په وسیله افاده کیږي، چي خوله یې و ښې یا راسته لوري ته خلاصیږي(ू) ؛ لکه په دغو ټکو کښې:

dūdha/ dūdh = दूध (شیدې/ شؤدې)

(būṛhā) = बूढ़ा बूढा (būḍhā) / زوړ سړی، بؤډا(

( زلزله भूकम्प /bhūkampa)
bhūkamp =

د سنسکریت، پراکریت، هندي او ځینو نورو هندو - آریایي ژبو دا ږغ د پښتو له هغه ځرګند مشدد «و» سره معادل دئ، چي په ویلو کښې له ورایه خج یا فشار ( accent/ stress) لیدل کیږي؛ لکه د پښتو په دغو کلیمو کښي، چي زې (زه یې) د همزه لرونکي «ؤ» په مرسته افاده کوم:

- لوستؤنکی، وهؤنکی، ښوؤنکی، کتؤنکی...

- قصؤر، حضؤر، ضرؤر، محشؤر، مشهؤر...

-سُکؤن، جُنؤن، فُنؤن، آزمؤن/ازمؤن، افسؤن، جیحؤن، هامؤن، قانؤن...

- رؤس، جؤس، نامؤس، پانؤس، منحؤس...

-موجؤد، هنؤد، یهؤد، حسؤد، ورؤد...

ځیني ښبتانه لیکوال دا ډؤل مشدد معرؤف «و» په ځینو (نه ګردو) ټکو کښي د دوو «واوو» په کارولو سره تمثیلیي؛ حال دا چي ځیني لیکوال دوه «واوه» په ماضي زمانه کښي د فاعل له مفردي صیغې او ځیني نور یې د فاعل له جمعي صیغي سره د کومکي فعل په توګه کاریي.

درانه لوستؤنکي ګوري، چي په اوله او دوهمه فقره کښي بیان سوي واونه دواړه معروف یا ځرګند واونه دي. یاني د دواړو ږغ او ادا واضح او ځرګنده ده؛ خو سره له هغه هم یو له بله ډېر پَرک لري. یو پوست او سپک، بل مشدد او درؤند دئ. ایا د «موجؤد» عربي کلیمې د اول او دوهم «و» تر منځ پَرک نه ګورو؟ ایا په «لوستؤنکي» کښي د اول او دوهم «و» ترمنځ توپیر نسته؟ ایا په «ګوته» او «سکؤن» کښي د «و» ږغ یو راز دئ؟ جواب اسانه او روښانه دئ. د «موجؤد» او «لوستؤنکي» اول «و» پوست او بې خجه؛ خو دوهم «و» یې سخت او درؤند دئ؛ همېشه په فشار او تأکید سره ادا کیږي. په بین المللي فونیټیکه الفبې کښي اول «و» د «au»، دوهم «و» د «ū» په نخښه افاده کیږي.

۳) ओ:

د دېوناګري لیکدود په فونیټیکه الفبې کښي د «و» دا ډَوْل ږغ زیاتره د «o» کله کله د «ō» په نخښه ښوول سوئ او ښوول کیږي؛ لکه په دغو ټکو کښي:

ओर = ora/ or (لوری، خوا، طَرَف)

ओझा = ojhā (جادؤګر، ساحر، غیبګو، کاهن)

(تکړه، قوي، ځواکمن، چُست، چالاکه

ओजस्वी = ojasvī /ojaswī)

ओबामा (Obāmā = د امریکا دولتمشر، اوباما)

دا «و» د کلیمې په منځ یا سېلابمنځي (Intra-syllabic) حالت کښي پر یوه عمودي خط باندي د یوه کوچني پورتني (superscript) ایرَب خطګوټي په وسیله تمثیلیږي (ो)؛ لکه په دغو ټکو کښي:

(خلګ، وګړي، اؤلس = लोग log)

(کرل، شین کول बोना= bonā)

( دَرَوْل، مخنیوی، کنټرول، موقتي چارَه रोकथाम = rokathāma/ rokathām)

د هندو - آريايي ژبو دا «و» په پښتو کښې د مجهول يا اوږده «و» په نامه يادېږي؛ خو په پښتو ليکدود کښې نه د افادې او تمثيل څه خاصه نخښه سته، او نه يې بېله څو ګوتو په شمار ليکوالو څخه چا په سهي او دقيق استعمال سر ګرزولئ دئ. تقريباً هر چيري د «و» نورو ډوّلو غوندي د ساده «و» په توري افاده کيږي؛ لکه په دغو ټکو کښې: بور، تور، سکور، نور، کور، ګور، مور، خور، ورور، پېغور، څلور، اور، شور، ښور، زور او داسي نور.

۴) औ:

د هندو - آريايي ژبو د «و» دا ړغ د دېوناګري ليکدود په فونيټيکه الفبې کښې د «au» په تورو افاده کيږي؛ لکه په دغو ټکو کښې:

( ښځه، مېرمن  aurata /aurat = औरत)

( او، په انګرېزي کښې  and, more)

(aura /aur = और)

( عقل، هوښ، هوښياري، حواس، پر ځان تسلط، متانت، زړورتيا، ارامي (ausān = औसान

د «و» دا بڼه د کليمو په منځ يا سېلابمنځي حالت کښې يوازي پر يوه عمودي خط باندي د دوو پورتنيو (superscript) کږو يا ايرَب خطو په نخښه ښوول کيږي (ौ)؛ لکه په دغو ټکو کښې:

(ځغاسته، منډه  daurạnā = दौड़ना)

(سيالي، مسابقه  daur = दौड़)

( د لؤر زوی، د لؤر د خوا لمسی  दौहित्र (dauhitr =

د «و» دا ډوَل په واقعيت کښې د پاسته يا سپک معرؤف واو (u) او مجهول واو (o) تر منځ ړغ لري. په بله وينا دا «و» د پاسته يا سپک معرؤف واو (u) او مجهول واو (o) له امتزاج څخه پيدا سوئ دئ. کېداى سي د مجهول ډوّله يا شبه مجهول «و» په نامه و بلل سي.

د هندو - آريايي ژبو د دې ډوَل «و» بولګې او مثالونه د پښتو په دغه راز ټکو کښې ګورو: او (نور)، اوسان، دوران، دوره، دولت، اوسط، اولاد، اوتاد، اوراد، اوزار، اوغان (د افغان مفغنه بڼه)، اوګار (په جنوب -لوېديځه لهجه کښې د افګار مفغنه بڼه)، اوکوب، اوضاع، اوقات، لَو، نَو (لندبل، رطوبت)، رَو، خَو (خَوګري)، روذَه، ګټَو، کندو، ګسو (جنګ، مقابله)، پيرو، پېشرو، پَلَو، چَلَو، جيلو/ جِلو، موقع، موضع، توجيه، توزيع، توليد، توصيف، توظيف، توفيق، توقيف او داسي نور.

دا وه د «و» هغه څلور بېل ډوّلونه، چي په هندو آريايي ژبو کښې په سېلابېک او سېلابمنځي بڼو کارېږي. اوس راځو د واول وزمه يا شبه واول هغه «و» ته، چي همېشه په سېلابيکه بڼه استعمالېږي.

۵) व:

په هندو آريايي ژبو کښې د «و» دا ډوَل ړغ «يَه»، «رَه» او «لَه» غوندي د شبه واول (semivowel ) په ډله کښې شمېري، چي د سنسکريت او هندي د ځينو مؤلفانو په اثارو کښې په «v»، په ځينو کښې په «w» او په

ځينو نورو کښي په «v» او «w» دواړو تمثيل سوئ دئ؛ لکه په دغو کليمو کښي:

(شی، څيز، توکی، جنس= वस्तु = vastu/ wastu)

(کال، يوکلنه مؤده، دولس مياشتي = वर्ष = varṣa/ warṣ/ varśa/ warś)

(دؤعا / دعا، حاجت غوښتنه، راز و نياز = वरदान varadāna/ varadān/ waradāna /waradān =)

د هندي ژبي اصلي ويؤنکي د «و» دا ړغ په ځينو ټکو کښي د «v» او په ځينو نورو کښي د «w» په بڼه وايي. مانا دا چي په دوی کښي د «v» او «w» فونيم دواړي مغيري بڼې يا الوفونونه (allophones) ژوندي او مستعمل دي.

وطن، وزير، والي، وکيل، وبا، وفا، وريد، وتل، ويل، ورېشل، وژل، ولاړ، ودان، ور، وزر، وخت، وضاحت، وار، واده، والِد، والِده، ورثه، وسيله، واسِطه، وراشه، وراسته، وړوکی، وفات، وير، ويده (بيده)، وينځل (مينځل)، ويشتل، وِقار، وِجدان او داسي نور ټول په پښتو کښي د دغه واول وزمه «و» ځيني نمونې او مثالونه دي.

په دې ترتيب مو وليدل، چي هندو-آريايي ژبو غوندي په پښتو کښي هم د «و» دوه (معروف او مجهول) نه، بلکي پؤره پينځه بېل ډَوُلونه لرو، چي هر يو يې د ژبي په زرو جلا جلا ټکو کښي کار سوي دي. البته، له هندو - آريايي ژبو، په تېره بيا سنسکريت سره د پښتو د فينالوژيکو خصوصيتو يورنګي او ورته والی يوازي د «و» په بېلابېلو ډَوُلو کښي نه خلاصه کيږي، بلکي په نورو واولو (vowels)، شبه واولو (semivowels)، ساکنو يا غيرمتحرکو ړغو (consonants) او د ساکنو ړغو په يوځايوالی يا تراګم (consonant clusters) کښي هم لمر غوندي روښانه دئ. دا ګډ ړغيز اړخونه ګرده له سنسکريت، خاصتاً ويدي سنسکريت سره د پښتو د اشتراک او نيژدېوالي روښانه ثبوتونه ګڼل کيږي، چي په هيڅ بيه بايد له لاسه ور نه کړل سي.

لکه څنګه چي بېلابېلي «ياء» ګاني د کليمو د جنسيت، شمېر، مانا او ګرامري جوړښت په پېژندنه کښي ټاکؤنکی او مهم رول لري، د «و» جلا جلا ډَوُلونه هم د بېلابېلو کليمو په سهي ويلو او دقيقه مانا اخيستنه کښي ارزښتناکه برخه لري. د دې مهمو توپيرو خوندي کول د پښتو ژبي د ړغيزو ځانګړتياوو پر اصالت او لرغونتيا سربېره، د ليک لوست د اسانۍ له اړخه هم ډېر ضروري او ګټور ګڼل کيږي.

دلته پوښتنه پيدا کيږي، چي پښتو ژبپوهانو ولي زمونږ په ژبه کښي د «و» پر دغو بېلو ړغو او د پښتو ليکدود په بشپړتيا او پرمختګ کښي د هغو پر انکار نه کېدؤنکي رول سربېره، بيا هم د جلا او خاصو نخښو د ټاکلو او رواجولو پر خای، تر اوسه د «و» په يوه سربدالؤنکې او تېرايستؤنکې نخښه ګوزاره کړې ده؟

و دې مهمي پوښتني ته د جواب ورکولو دپاره بايد پښتو ژبپوهان پر څو ډلو وېشوو:

-د لويو القابو او غټو لاپو شاپو پر خلاف، د ځينو تر اوسه په دې خبره سر نه خلاصيږي، چي په پښتو کښي له لويه سره د «و» څو ډَوُلونه لرو. هغوی د پښتو «و» ګرده ډَوُلونه د

معروف او مجهول «و» په دوه ګوني وېش کښې را نغاړي.

- ځیني نور استدلال کیي، چې د یوې ژبې په لیکدود کښې د زیاتو تورو او نخښو کارول، د هغې ژبې و لیکوُنکو ته اضافي ستونزې او کړاونه پیدا کیي؛ ځکه نو باید تر وسه وسه په لږو تورو او نخښو ګوزاره وسي. دا ښاغلي ښایي خبر نه یي، چې د تامیل ژبې لیکدود له یودېرشو (۳۱) خپلواکو یا جلا او دوه سوه و شپاړسو (۲۱۶) مؤښتو/ نښتو یا مرکبو تورو څخه جوړ سوئ دئ، چې ګرده په ګډه د دوه سوه و اووه څلوېښتو (۲۴۷) مؤښتو یا تړولو تورو استازیتوب او ترجماني کیي[8]. پوُره دوه سوه اووه څلوېښت جلا او مؤښتي توري. په خوله یادېږي! سره له دې هم هیڅ تامیلی د خپلي مورنۍ ژبې په لیک لوست کښې ستونزه او تکلیف نه لري. یو وار یې سم او اساسي زده کیي، بیا د ژوند تر پایه هیڅ مشکل او زحمت نه ګوري.

- ځیني نور ښایي د «و» د بېلو بېلو ږغو له تشخیص او پېژندني څخه نېه و نه کي، خو د پېښوریانو په اصطلاح د جلا تورو د ټاکلو او رواجولو په چل یې سد نه رسیږي یا لږ تر لږه د دې زړه او جُرأت نه سي کولای، چې د داسي نوي موضوع په را پورته کولو سره د دودپالؤ پښتنو مخالف او مقاومت را وپاریي.

که پخوا د پښتو «و» د مختلفو ډَوُلو په پېژندنه کښې له شک او شبهې سره مخامخ وو، د دې مقایسه یې څېړني او پراخو مثالو په روښا کښې نور د پښتو «و» د بېلابېلو ډَوُلو د پېژندني هیڅ راز مشکل نه پاتیږي. په بله وینا، د دې مقایسه یې شننې په اِستِناد نور هر پوه او هوښیار لوستوُنکی پوهېږي، چې هندو -آریایي ژبو غوندي، په پښتو کښې هم د «و» پینځه بېل ډَوُلونه کاریږي. د دې خبري مانا دا ده، چې د پښتو د پینځو بېلو بېلو «یاء» ګانو په څېر، د «و» د دې پینځو بېلو بېلو ږغو د افادې او تمثیل دپاره هم و پینځو جلا جلا نخښو ته اړتیا لرو. دا حقیقت لمر غوندي روښانه دئ. د پښتو پخوانو ژبپوهانو که تر اوسه په دې برخه کښې علمي او مسلکي نوښت نه دئ کړئ، څه عجبه خبره نه ده؛ ځکه د ژبې لیکدود، لغوي زېرمه، علمي منابع او ځیني نوري څانګې د همېشني پرمختګ او بشپړتیا په حال کښې دي. دا زموږ ځوانانو علمي او فرهنګي رسالت دئ، چې د خپلي سپېڅلي او لرغوني ژبې د بېلابېلو کمزوریو او خلاوو د لیري کولو دپاره ګډ علمي او تحقیقي کار وکو.

دا خبره له شکه وتلې ده، چې د یوې ژبې په املایي سیستم کښې د نوو تورو او نخښو وضع کول، په پیل کښې له څه موقتي مشکلاتو او پېچومو خالي نه یي. دا خبره هم لمر غوندي روښانه ده، چې د ژبې ټول لوستوُنکي تر څه مودې وروسته له هر راز نوو بدلونو سره پوُره اشنایي مومي؛ او په نتیجه کښې ژبه د پرمختیا او بشپړتیا پر لور لوی او مُهم ګامونه اخلي. دا پرمختګونه د ژبې په هره برخه، په تېره بیا د ژبې د سهي لیکلو او اسانه زده کولو په بهیر کښې له لوستوُنکو او لیکوُنکو سره ارزښتناکه مرسته کیي.

د هري ژبې په لیکدود کښې د دا ډول بشپړتیايي اصلاحاتو او بدلونو را منځ ته کول څه نوې او عجبه خبره نه ده. د ښه پوهېدو دپاره يې يو مثال وړاندي کوو. د افغان څېړونکو د تر لاسه سوو مالوماتو له مخي، د پښتو ژبې اوسنۍ الفبې واردواره د سلطان محمود غزنوي (۳۸۹ - ۴۲۱ هـ ق) د کنداري وزير - احمد بن حسن ميمندي (ميوندي) په امر د قاضي سيف الله له خوا د عربي، پاړسي، پنجابي او سندهي ژبو د الفباوو په کومک جوړه سوې ده[۹]. البته، تر دې دمخه په ښلابښلو تاريخي پړاوو کښې له آرامي، براهمي، يوناني او خروشتي ليکدودو څخه کار اخيستل کېدئ[۱۰]. د پښتو ادب عارف شاعر او د روښاني طريقت خليفه - دولت لوانی (تر ۱۰۶۹ هـ ق پوري په يقين سره ژوندی) د خپل ديوان په يوه بيت کښې د پښتو اته اصيل توري؛ لکه «ټ، ځ، څ، ډ، ړ، ږ، ښ، ڼ» د خپل عرفاني پير - بايزيد روښان اورمړ انصاري (۹۳۱ - ۹۸۰ هـ ق) نوښت بولي؛ او د ځينو نورو تورو په ور زياتولو سره يې ټولټال ديرلس شمېري. دی وايي:

افغاني لفظ مشکل و، لوست، کويښ نه شه
ورته وشوه کننده ديارلس حرفونه[۱۱]

تر روښانيانو وروسته پښتو مرکې او په هغې پسې پښتو ټولني زموږ د املايي سيستم د بشپړتيا او پرمختيا په بهير کښې ارزښتناکه ونډه واخيستله؛ او دا تکاملي جريان به په دغه ډول، تل تر تله جاري او ساري يي. اوس نو زموږ آگاه او اندېشمند لوستونکي په خپله تصور کولای سي، که د دولت لواني له بيان سره سم، پير روښان د پښتو و اصيلو او لرغونو ږغو ته خاص توري نه واي ټاکلي، موږ به تر اوسه د «ټ، ځ، څ، ډ، ړ، ږ، ښ، ڼ» ږغونه په ليکلې بڼه نه پېژندلای؛ په خوله به مو يو څه ويلای، خو په قلم به مو د عربي يا پاړسي الفبې ځيني توري ليکلای؟ دغه راز، که د افغاني ژبپوهانو په نوښت په پښتو کښې د «ياء» گانو پينځه بېل ډوَلونه نه واي ټاکل سوي، اوس به مو د «ياء» و ښلابښلو ږغو ته فقط يو راز «ی» کارولای. ښايي ځيني استدلال وکي، چي د پينځو جلا جلا «ياء» گانو پر ځای د يوې «ياء» کارول خو په ليکنه کښې ساده گي او اساني راولي؛ حال دا چي واقعيت داسي نه دئ. په لږ غَوَر او ځير سره موږ ټول له ورايه گورو، چي د پينځو ښلو اوازو پر ځای د يوې نخښې په ټاکلو او کارولو سره نه يوازي د ژبې اصالت تر پښو لاندي کېږي، بلکي لوستونکو ته د کليمو او حتا جوُملو په مانا اخيسته کښې هم لوی جنجالونه او کړاوونه پېښېږي. په دې چي د «ياء» و ښلابښلو ږغو ته د واحدي نخښې په کارولو سره نه يوازي د مذکر او مؤنث، د جمعي او مفرد، اسم او فعل، ضمير او فعل او داسي نورو گرامري موضوعاتو او کټگوريو تر منځ ارزښتناک توپيرونه له منځه وړل کېږي، بلکي د مختلفو کليمو تر منځ و ژورو مانوي (معنوي) التباسو ته هم لار هوارېږي، چي د هغو په وجه و لوستونکو ته د ليکوالو له ليکنو څخه مفهوم اخيستل د معما تر حده گرانېږي. په «چرا يک ياء به جای سه ياء؟» مقاله کښې مو د ژونديو مثالو په وړاندي کولو سره ثابته کړې ده، چي په پاړسي کښې پر

معرؤفه او مجهوله «یاء» سربېره حتا یوه بله نرمه یا ملینه «یاء» هم سته؛ خو پاړسي لیکدود دا درې سره «یاء» ګاني په یوه توري افاده کیږي، چې هیڅ علمي اساس نه لري[۱۲].

باید په ټینګار سره یادونه وکو، چې پاړسي ژبه په ادبي لحاظ ډېره پراخه او شتمنه، خو د لیکدود په لحاظ ډېره کمزورې او نیمګړې ده. له دې اسیته یې باید هیڅکله د لیکدود پیروي و نه کو. د یوه لنډ او روښانه مثال دپاره یې د سي. آی. اې (C.I.A.) الفبیټیزم په پام کښې ونیسئ. په دې الفبیټیزم کښې له ورایه د درو بېلو «یاء» ګانو ږغونه ګورو. سره له هغه هم په پاړسي کښې درې سره «یاء» ګاني په یو راز «یاء» کاري. هغه چا چې دا ترکیبي نوم کله نه یي اروېدلئ، اریانیږي چې اوله، دوهمه او دریمه «یاء» په څه ډَوَل و وایي؛ ځکه درې سره «یاء» ګانې یوه بڼه لري. سربېره پر دې، راتلؤنکو ټکو ته وګورئ، چې د «یاء» ږغونه یې څونه یو له بله پَرک لري، سره له دې هم په پاړسي لیکدود کښې د اسانۍ په نامه و ټولو ته یو راز «ی» کاریږي:

- جاي، واي، رأي، ناي، نی، نیستان، نینواز، نیسان او داسي نور. دا ډَوَل «یاء» په فونټیکه الفبې کښې د «ai» یا «ay» په تورو افاده کیږي.

- سیرت، طینت، طبیعت، صیانت، سین، شین، زندګی، بندګی، آزادی، بیهودګی، رهایی، تشنګی او داسي نور. دا ډَوَل «یاء» په فونټیکه الفبې کښې د «آ» یا «i» په نخښه تمثیلیږي. په دغه راز «یاء» کښې له ورایه خج یا فشار لیدل کیږي. د دې عاجز په نېز (نِزد) باید دا ډَوَل «یاء» ګاني همېشه په معرؤفه یا څرګنده «یاء» وکښل سي؛ لکه: بندګي، زندګي، آزادي، بیهودګي، رهایي، تشنګي او داسي نور.

- شېر، سېر، تېر، زېر، تېز، رېز، مېز، سېب، پېش، بېش، تېغ، دربېغ او داسي نور. دا ډَوَل «یاء» په فونټیکه بین المللي الفبې کښې د «e» په توري ښوول کیږي. د پاړسي دا ډَوَل ټکي باید د ژبې د ږغیزو خصوصیتو د اصالت خوندي کولو او بېلابېلو مانوي التباسو د مخنیوي په خاطر همېشه په مجهوله یا اوږده «ې» و لیکل سي.

زموږ دراک او اندېشمند لوستؤنکي دي په دغو مثالو کښې د درو بېلو «یاء» ګانو پر ځای د یوې «یاء» د کارولو په وجه و دغه راز مانوي التباسو او مغالطو ته هم دقیق نظر واړیي؛ او د منطق او عقلمندۍ په رڼا کښې دي قضاوت وکي، چې د دوو جلا جلا «یاء» ګانو پر ځای د یوې نخښې کارول و لوستؤنکو ته څونه فکري شکنجه او عذاب ور کیږي:

شیر /šīr/ [په مشدده معرؤفه یاء] // مفرد اسم //: (شیدې/شؤدې).

شېر /šer/ [په مجهوله یاء] //مفرد اسم //: (زمری/مزری، اسد، غضنفر).

ریش /rīš/ [په مشدده معرؤفه یاء] //مفرد اسم//: (ږیره/ږره، د نارینه د مخ وېښتان).

رېش/reš/ [په مجهوله یاء] //مفرد اسم//: (ټپ، پرهار، زخم، جراحت؛ لکه دِلرېش = هغه څوک چې زړه ئې زخمي یي).

سیر /sīr/ [په مشدده معرؤفه یاء] //مفرد اسم//: (هؤږه/ اؤږه، په هندي او اؤردؤ کښې لهسن).

سېر /ser/ [په مجهوله یاء] //صفت//: (موړ، هغه چا چي په ماړه نس ډوډۍ خوړلې یي، دوږي ضد).

تیر /tīr/ [په مشدده معرؤفه یاء] //مفرد اسم// : (غشی، هغه نېغ، لنډ او تېز نوکه لرگی، چي د لیندۍ یا کمانې په وسیله ویشتل کیږي؛ ناوک، خدنگ، پیکان).

تېر /ter/ [په مجهوله یاء] //اسم، صفت، قید، ادات//: (پخوا، پخوانی، دمخه، مخکنی، سابقه، تېر سوئ، تللئ).

د نرمې، معرؤفي او مجهولي «یاء» تر منځ و حساسو او ارزښتناکو ږغیزو پَرکو ته د پام نه کولو په وجه دئ، چي نن په پاړسي کښې د امریکا د دباندنییو چارو وزیر - جان کېري (John Kerry) د جان کری په ډَوْل کاږي. کېري (په لومړۍ مجهوله او وروستۍ معرؤفه مشدده یاء) چیري او کری (په یوازي یوه وروستۍ، هغه هم نرمه یا پسته یاء) چیري. گران لوستؤنکي په خپله قضاوت کولای سي، چي د ږغو په دې تحریف او تصحیف کښې د «کېري» کلیمې و اصلیت او حقیقت ته څونه زیان رسیږي؟! لکه څنگه چي گورو، په پاړسي املاء کښې لومړۍ مجهوله یا اوږده «یاء» کؤږټ له قلمه غؤرځولې ده؛ او وروستۍ معرؤفه مشدده «ي» یې په نرمه یا پسته «ی» اړولې ده.

پر «یاء» گانو سربېره، په پاړسي کښې وطن watan (هیواد، مملکت)، خون xūn (وینه) او خوښ xeš (ځان، خپل) هم درې سره په یوه راز «و» کاږي؛ په داسي حال کښې چي د «و» ږغ د «وطن» او «خون» په ټکو کښې مځکه او اسمان پَرک لري؛ او د «خوښ» په وینگ کښې خو له لویه سره د «و» ږغ سته نه. البته، د پاړسي لیکدود کمزورۍ او نیمگړتیاوي یوازي د «یاء» او «و» د ږغو په گډوډۍ کښې نه خلاصه کیږي.

اساسي ستونزه دا ده، چي په یوه گرافیم یا نخښه د بېلابېلو فونیمو یا ږغو افاده کول، د زمانې په تېرېدو سره سَؤکه د خلگو اصلي او لرغوني تلفظونه هم پر بل مخ اړیي؛ مثلاً ایرانیان اوس شیر (شیدې/ شؤدې) او شېر (زمری/مزری، اسد، غضنفر) دواړه یو راز (په معرؤفه یاء) وایي. زموږ دري ژبو لا تر اوسه په شفاهي خبرو کښې د دې دوو مشابه ټکو تر منځ پَرک خوندي ساتلئ دئ: لومړی په معرؤفه مشدده یاء او دوهم په مجهوله یا اوږده یاء وایي؛ خو د زمانې په تېرېدو سره به ایرانیانو غوندي د دوی په وینگ کښې هم دا ږغیز توپیرونه تر خاورو لاندي سي. د مېز، تېز، بېښ، رېښ، تېغ، مېخ، سېب، جېب او سوو نورو ټکو تلفظونه به د میز، تیز، بیش، ریش، تیغ، میخ، سیب، جیب ا و داسي نورو رنگ واخلي. د دې ناوړه تحریف او تصحیف یوازنی علت دا دئ، چي دوی و بېلو بېلو ږغو ته فقط یوه نخښه ټاکلې ده. په دې چي خلگ د بېلابېلو دلایلو له مخي تر وینگ یا تلفظ و کښنگ یا لیکدود ته ډېر ارزښت ورکیي، ځکه نو د وخت په تېرېدو سره لیکنۍ یا تحریري

ښه کرار کرار د ژبنۍ یا شفاهي بڼې ځای نیسي.

که چیرې د «یاء» یا «و» و بېلو بېلو رغو ته له یوه توري څخه کار واخلو بیا خو دا پوښتنه هم را ولاړیږي، چې په پښتو کښې د «ښ»، «ش» او «خ»، «څ» او «س»، د «ز» او «ځ»، «ږ»، «ړ» او «گ»، «ړ» او «ڼ» او داسې نورو قریب المخرجه رغو تر منځ پَرک هم په پام کښي و نه نیول سي. په خواشینۍ سره زموږ ځیني پښتانه اوس لا هم د دغو رغو په ویلو کښې چندان توپیر نه کیي. تاسي وگورئ که په پښتو کښې د «ش»، «ښ» او «خ» رغو تر منځ توپیر ته پام و نه کو، د بېلابېلو کلیمو په ماناوو کښي څونه ژور التباسونه پېښیږي؛ مثلاً شندل په «ش» د پاشلو، خپرولو/ خورولو مانا لري. ښندل په «ښ» د بخښلو، هبه کولو، جارولو، قربانو، ورکولو او داسي نورو ماناوي لري. خندل په «خ» د مسېدو، خندولو یا خندېدو مانا افاده کیي. ښادي په «ښ» د خوښۍ او خوشالۍ مفهوم لري. شادي په «ش» د بیزو په مانا ده. خادې (په مجهوله ې) د «خاده» جمع ده، چې د ستني، تیر او داسي نورو په مانا کاریږي. «څانگه» په «څ» د ښاخ، ښاخلې، شعبې، برخې، چړیکي/ څړیکي، درد او داسي نورو ماناوي لري؛ په داسي حال کښي چي «سانگه» په «س» د نېزې، غشي، تېره سیخ او داسي نورو په مانا راغلې ده. د داسي ټکو شمار تر انده پاس دئ، چي د اوازو په لړ اختلاط او التباس سره یې په ماناوو کښي هم مځکه او اسمان پَرک راځي. یو بل مثال: ایرانیان زبان (za-bān) (ژبه) د زبۆن (za-būn) په ډَوَل وایي؛ حال دا چي «زبۆن» په هیڅ وجه او هیڅ معیار د «زبان» معادل نه دئ. د «زبان» تحریري بڼه د «زبۆن» د شفاهي بڼې او برعکس د «زبۆن» شفاهي بڼه د «زبان» د تحریري بڼې تمثیل او نمایندگي نه سي کولای. که څوک پینځه سوه کاله وروسته د پارسي ژبې د رغیزو ځانگړتیاوو په اړه څېړنه او پلټنه وغواړي، د دې ژبې په ادبي اثارو کښي یوازې د «زبان» له تحریري شکل سره مخامخ کیږي. دا تحریري بڼه و څېړونکي ته د دې ټکي د شفاهي بڼې په اړه دقیق مالومات نه سي ورکولای؛ ځکه خلگو خو پینځه سوه کاله دمخه دا ټکی د «زبۆن» په بڼه وایه، نه د «زبان» په تحریري بڼه.

په دې ترتیب گورو، چي د بېلابېلو رغو د تمثیل دپاره د یوې نخښې یا د یوې نخښې پر ځای د بلې نخښې کارول ژبه پر بل مخ اړیي؛ لرغونتوب او اصالت یې په خاورو کښې مروړي. داسي مروړلې او کږه وږه ژبه په هیڅ وجه د خلگو د پخوانییو نسلو د لرغوني او اصیلي ژبې استازیتوب نه سي کولای. نه زموږ نیکونو «پښتون»، «کښېناستل»، «کښېښوول/ کښېښودل»، «ښکنځل»، «رغ»، «انگې» او داسي نور د «پختون»، «کېناستل»، «کېښوول/ کېښودل»، «کنځل»، «غږ» او «انگړ» په ډَوَل ویل او نه هم د پارسي ژبو پلرو او نیکو شیر (شیدې/ شۆدې) او شېر (زمری/ مزری) په یوه راز ویل. د دې ټولو انحرافاتو او تصحیفاتو په تعمیم او ترویج کښي د لیکدود لوی لاس دئ.

موږ تول باید په دې روښانه حقیقت ښه سر خلاص کو، چې د یوې ژبې د اصالت او لرغونتیا تر ټولو مهمه او اساسي وسیله د هغې ږغیزي او ګرامري ځانګړتیاوې دي نه دا او هغه خودساخته لغتونه، چې همېشه د تغییر او تبدیل په حال کښې دي یا دا او هغه علمي-ادبي اثر، چې د دې یا هغه لیکوال د مغزو پیدوار ګڼل کیږي. یوازې د یوې ژبې فونیټک او ګرامري خصوصیتونه د هغې ژبې د اصلي ویؤنکو د ژبنیو ځانګړتیاوو ښکارندوی دي. د یوه لیکوال ژبه یا د څو لیکوالو علمي -ادبي اثار موږ ته د یوه اولس د ژبې او ادبي سویې په اړه دقیق او کره مالومات نه سي راکولای؛ په داسي حال کښې چې د اولس ژبه، متلونه، وراشې، انګېرنې، ټوټکې، موسیقي او نور فرهنګي اړخونه موږ ته د یوې ټولني د ټولو وګړو د علمي او فرهنګي سطحې په باره کښې روښانه او دقیق تصویر وړاندې کولای سي؛ ځکه دلته د «ګل» خبره ده او هلته د «جزء». موږ باید همېشه په «ګل» پسې ولاړ سو؛ او «ګل» و ژغورو. د «ګل» په ساتنې او پالنې سره «جزء» په خپله ژغورل کیږي.

د دغو دلایلو له مخې د نړۍ په بېلابېلو ژبو کښې د ژبې د هرې برخې، په تېره بیا لیکدود د غنا او بشپړتیا و مسألې ته په ډېر قدر او ارزښت کتل کیږي. تاسې وګورئ د دېوناګري لیکدود لوړتیا او بشپړتیا څونه پړاؤنه وهلي دي: په پیل کښې د آشؤکا له براهمي (Brāhmī) لیکدود څخه ګؤپتا لیکدود (Gupta script) یا ګؤپتا براهمي لیکدود (BrāhmīGupta Script) را وټؤکېدئ، چې د هند په نیمه وچه کښې د ګؤپتا امپراتورۍ (شاوخوا ۳۲۰ - ۵۵۰ ع) د دیني او فرهنګي عروج په زمانه کښې د سنسکریت لیکنې د املایي سیسټم په توګه کارېدئ[۱۳]. دې لیکدود ورو ورو و ناګري (Nāgarī)، شارَدا (Śāradā) او سیدّهم (Siddham) لیکدودو ته لار هواره کړه، چې هغو هم په خپل وار سره د ډېرو نورو ارزښتناکو لیکدودو لکه دېوناګري، ګؤرومؤخي (د سیکانو د پنجابي ژبې لیکدود)، بنګالي او تیبتي لیکدود و را پیدا کېدو ته عملي شرایط او امکانات برابر کړل[۱۴]. په دې ترتیب، دېوناګري لیکدود تر براهمي، ګؤپتا، ناګري، شارَدا او سیدّهم لیکدودو وروسته د سنسکریت لیکنې نوی لیکدود بلل کیږي، چې تر نونسمي سدۍ/ سلۍ[۱۵] وروسته باب سوئ دئ. دا لیکدود اوس د هندي، نیپالي، مراټهي، کونکني، بډو/ بوډو، میتیهلي او ځینو نورو ژبو او لهجو د لیکنې دپاره کاریږي (پخوا ګؤجراتي/ ګجراتي ژبه هم په دغه لیکدود کښل کېدله).
تقریباً ټولو براهمي لیکدودو غوندي د دېوناګري لیکدود تر ټولو لویه او اساسي ځانګړتیا د فونیټکو (phoneti ) اصولو پیروي ده، چې د هر بې ږغه او ږغیز توري د وینګ روښانه لار او ځای په پام کښې نیسي. په بله وینا، دېوناګري لیکدود د هرې کلیمې د بېلابېلو ږغیزو او بې ږغه تورو سېلابیکه او غیرسېلابیکه بڼه یا صوتي او حرکي خصوصیتونه په دقیقه توګه ښیي. د توجه او تعمق وړ خبره دا ده، چې د دېوناګري لیکدود

دا ارزښتونه او پرمختګونه ګرده د بېلابېلو تاريخي ليکدودو د يو ځای کولو او پرله پسي تکامل نتيجه ده، چې تر اوسه هم په بشپړ قوت پر مخ رهي دئ. د هند اساسي قانون په (۱۹۵۰ع) کښي دا خبره تصويب کړه، چې د نړۍ ځلرمه پراخه کارېدونکې ژبه (هندي) بايد په دېوناګري ليکدود و کښل سي. د هند د پوهني او فرهنګ وزارت د هندي ژبي مرکزي اداره تر ګرده زيار باسي، چې د دېوناګري ليکدود د ځينو تورو د اسانه کولو او ښه کولو او د نورو ژبو د بېلابېلو ږغو د پېژندني او تشخيص دپاره د بېلو بېلو نخښو د ټاکلو له لاري، په ليکنه کښي لا زياته يورنګي او انسجام را منځ ته کي.

د دېوناګري ليکدود د بشپړتيايي بهير د يادوني مخسد دا دئ، چې زموږ ژبپوهان هم بايد د نوو تورو او نخښو په ټاکلو او رواجولو سره له يوې خوا د پښتو ژبي د ږغيزو خصوصيتو د خوندي کولو او له بلي خوا د ليک لوست د لا اسانه کولو په برخه کښي خپل علمي -فرهنګي رسالت ته ټينګ پام وکي. ايا دا ګرانه ده، چې پښتو ژبپوهان او ذوقمندان يو ځای سره کښېني او د «و» بېلو بېلو ډَوَلو ته د «ۆ»، «ۈ»، «ۇ»، «ۋ»، «ۏ»، «ٶ»، «ۉ» يا داسي نورو په شان جلا جلا نخښي و ټاکي؟

ايا دا د تأسف او تعجب وړ خبره نه ده، چې د پير روښان پينځه سوه کاله دمخه په پښتو ليکدود کښي د نوو تورو يا نخښو د وضع کولو په ضرورت او ارزښت سر خلاص ؤ. په خپل ارزښتناک نوښت سره يې تر ډېره حده زموږ د پلرو او نيکو د سپېڅلي ژبي د لرغونتيا او اصالت خوندي کولو وياړ وګاټه، خو زموږ اوسني ژبپوهان پر لويو لويو اکاډيميکو القابو او عناوينو سربېره تر اوسه د پښتو ليکدود و دغه راز کمزوريو او نيمګړتياوو ته لاس تر زني ناست دي؛ او په دې واقعيت سر نه خلاصيږي، چې ژبه خو يوازي د پروني او نن‌ني نسل دپاره نه ده. د نورو برخو د تدريجي پرمختيا او بشپړتيا تر څنګ يې بايد د ږغيزو اصولو او موازينو پر اساس د املايي سيستم و پرمختګ او تکامل ته هم پوره پام او دقت وسي.

زموږ راتلونکي پښتونه بايد په تمامه مانا پوه سي، چې پلرو او نيکو يې د خپلي ژبي بېلابېلي کليمې په څه ډَوَل ويلې. دا کار يوازي د ژبي د بېلابېلو ږغو د سم او دقيق ټرانسکرېپشن (transcription) له لاري ممکن دئ. د يوې ژبي د مختلفو اوازو سهي او علمي ټرانسکرېپشن نه يوازي د هغې ژبي اصالت او لرغونتوب خوندي کيي، بلکي بېلابېلو پښتو «ياء» ګانو غوندي د ليک لوست په اسانه کولو کښي هم پراخه او ارزښتناکه ونډه اخلي.

**لمنليکونه:**

۱. علي محمد مخلص، د ديوان خطي نۆخسه، or ٦٧٥٦، برېټيش کتابتون، لندن.
۲. مخلص، د ديوان همغه خطي نۆخسه.
۳. عربي «اولاد» اصلاً د «وَلد» جمع دئ؛ خو په پښتو او پاړسي دواړو کښي په مفرده مانا کارېږي. په پښتو کښې جمع (په واقعيت کښي جمع

الجمع) اولادونه، په پاړسي کښې جمع اولادهاده.

۴. لعل محمد کاکړ او عبدالحی حبیبي، سپېڅلې پښتو (کندهار: طلوع افغان، ۱۳۱۸).

۵. پوهاند عبدالشکور رشاد، د پټې خزانې فرهنګ، دوې برخي (کابل: د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځی، ۱۳۶۲). لومړۍ برخه.

٦. http://en.wikipedia.org/wiki/Indo-Iranian_languages; http://en.wikipedia.org/wiki/Pashto_language

٧. Prof. R.S. Mc Gregor, " Introduction," Outline of Hindi Grammar with Exercises (Oxford: Clarendon Press, ١٩٧٢) xxii-xxiii.

٨. http://en.wikipedia.org/wiki/Tamil_script

۹. پوهاند عبدالکشور رشاد، «د خیر البیان لیکدود او ګغتنامه،» خیرالبیان د بایزید روښان، عکسي چاپ. (کابل: د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو پوهنځی، ۱۳۵۳) ۶۶.

۱۰. پوهاند عبدالحی حبیبی، تاریخ خط ونوشته های کهن افغانستان : از عصر قبل التاریخ تا کنون (کابل: نشر کردهٔ انجمن تاریخ و ادب، اکادمی افغانستان، ۱۳۵۰) ۸، ۱۲، ۱۴، ۲۱.

۱۱. رشاد، «د خیر البیان لیکدود او ګغتنامه»، خیرالبیان د بایزید روښان ۶۱.

۱۲. ګران لوستونکي کولای سي د دغه اینټرنیټي لینک په کارولو سره د دې پراخي مقالې ټولي برخي او اړخونه ولولي.

١٣. http://www.larawbar.net/٢٨۴٩٩.html

١۴. http://en.wikipedia.org/wiki/Gupta_script

١۵. http://en.wikipedia.org/wiki/Devanagari

١٦. ټول افغان ژبپوهان، لیکوال او ژورنالیستان شپه او روځ په خپلو خبرو او لیکنو کښې د «پېړۍ» ټکی د سلو کالو یا یوه قرن په مفهوم کاریي؛ حال دا چي د هندي - پښتو دا مشترک ټکی د قرن یا سلو کالو مانا نه لري. که غواړئ چي د دې کلیمې په سهي مانا او ټولو جزییاتو ښه پوه سئ، د دې حقیر «د پېړۍ په مانا کي تېروتنه» مضمون و لولئ، چي د کندهار مجلې د (۱۳۹۳ش) کال په لومړۍ ګڼه یا ښنوا ویبپاڼه کښې (په نسبتاً بې خونده بڼه) خپور سوئ دئ: http://www.benawa.com/fullstory.php?id=۵۹۷۳٦


پای

څېړندوی عبدالغفور لېوال

# د بابا په شاعرۍ کې یوه سرګردانه اروا

د تاریخي شخصیتونو د اروائېږنې او دروني شخصیت پېژندنې یوه لاره دا ده، چې د نوي اروا پوهنې له معیارونو سره سم، له هغوی څخه راپاتې ویناوې، روایتونه، تصویرونه یا لیکنې وڅېړل شي. دې ته د شخصیتي روانکاوۍ پوهه وایي، چې په ادبي اثارو کې د تاریخ، ژبپوهنې، ادبي فنونو او اروا پوهنې په ګډه مرسته مطالعه کېږي.

احمدشاه بابا یو له همداسې سترو تاریخي شخصیتونو څخه دئ، چې ښایي د ګڼو څېړونکو او تاریخپوهانو له پاره به ئې شخصیت پېژندنه په زړه پورې وي. د دغه نومیالي شخصیت په اړه د روایتونو، لیکنو، شاهنامو، تاریخي اسنادو او تبصرو ترڅنګ، له ښکه مرغه د ده له خپلې قریحې څخه د شاعرۍ یو بشپړ دېوان راپاته دئ، چې د دغه ستر ټولواک او ادبي شخصیت د روانکاوۍ له پاره اصلي او لومړی لاس مواد دي.

احمدشاه بابا د خپل عسکري مزاج او له سیاست، جګړې او ادارې سره له اوږدمهالي تړاو سره سره خورا عاطفي او حساس شخصیت ښکاري. تر پاچاهي وړاندې په زلمیتوب کې د نادري خواکونو د یو افسر په توګه او بیا وروسته د خپلې شاهنشاهۍ پر مهال د هند او شاوخوا سیمو په نیولو کې خورا بوخت وو. خو داسې ښکاري، چې بابا د خپل ځان له پاره یو وخت بېل کړی وو، په همدغه بېل کړي وخت کې ځان ته ننوتلی دئ، د دنیا او عقبا په اړه ئې فکر کړی دئ، مینه ئې کړې، د هستۍ په اړه ئې پوښتنې شاربلې، د بابا په شاعرۍ کې د عرفاني مخاطب تر څنګ د یوه انساني محبوب حضور هم ګورو، د ده شاعري ګواه ده، چې بابا مینه کړې ده او همدغې مینې شاعرۍ ته اړ ایستلی دئ:

**نن بیا هسې د ګلزار په ننداره ځم**
**چې له یاره سره خوښ همکناره ځم**
**توري سترګې، سره لبان او شنه خالونه**
**ستا د لب په میو مست او مستانه ځم**
**مسته درخته د چندن زلفې ښامار دي**
**رقیبان که غاښ چیچې سر بریده ځم**
**معشوقې د ایران ډېرې، ترکې شوخې**
**خدای چې راکه ترکي هند ته دوباره ځم**

عشق او له محبوبې سره عاطفي اړیکې د شخصیت د پټو زاویو د پېژندنې له پاره ډېر مهم رازونه دي. تاسو د یوه شخصیت تیاره کونجونه نه شئ موندلای، تر دې چې د هغه د مینې څراغ و نه مومئ: احمدشاه بابا د خپلې انساني مینې د کشش او جاذبې په زړه پورې تجربې لري. په همدې پورته غزل کې ښکاري، چې د معشوقې

جاذبه ده، چې بابا ئې د لويو ملکونو فتحې ته پياوړې کړې دئ. دا غزل يوازې د محبوبې او شاهي فتوحاتو ذکر رااخيستی دئ. په شاعرۍ کې د اصلي روايتونو داړيکو شننه خورا مهمه ده، دې ته Moving Among Narratives ميتود ويلای شو، چې په مرسته ئې اصلي وسوسه موندل کېږي؛ د بابا د همدې غزل څو نور بيتونه:

**چې بر کړې مې خدای لاس پر رقيبانو**
**ترو به زه د هند پر لور په تماشه ځم**
**چې د هند د ملکو فتحه مې روزي سوه**
**نور ايران لره په توغ په نغاره ځم**
**پر راکړې داد دې خدای نه سي پښېمانه**
**تر نگين مې ايران لاندې شاهانه ځم**

زموږ واکمن شاعر خپل دا غزل له مينې پيلوي، بيخي د يوې داسې معشوقې له مينې څخه چې توري سترگې، سرې شونډې او شنه خالونه ئې عيني حضور زموږ د سترگو تر وړاندې دروي، بيا د عشق کشش په هند و ايران ورگډېږي، شعر دوه روايتونه يا Narratives لري. معشوقه او د نويو ولايتونو نيول، هغه هم د لوی خدای په مرسته. د شاعر روحي خوځښت د دې دواړو تر منځ راښيي، چې احمدشاه بابا په خپلو ورکو پسې خامخا ورځي او هېڅ څه ئې هم مخه نه شي نيولای، بابا د يوې پياوړې ارادې خاوند دئ، چې د عواطفو، جاذبې، قدرت او د تلپاتې حرکت گډوله ئې د اروايي شخصيت اصلي توکي دي.

د بابا شاعري د ده بله ځانگړنه دا راښيي، چې دی له نوي ژوندي چاپېريال سره عادت نه کوي، د اصلي ماء من پياوړې جاذبه، د لرغوني ژوند حسرت او اصل ته د راگرځېدلو جاذبه ئې په اروا کې د نوستالجۍ بنيادونه جوړوي. د ده ناکراره اروا هر ځای ته چې ځي اصل ته د راگرځېدو له تلوسې سره دوچار کېږي. همدا چې افشار نادر ووژل شو او ده ئې حرم وژغوره، په ډېره بېړه کندهار ته راستون شو، هر ځل چې ئې د هند سوبه وکړه، چارې ئې خپل باوري استازي ته وسپارلې او کندهار ته ئې بېړه وکړه، د بابا په دې مشهور شعر کې دا نوستالجي ځپې وهي:

**ستا د عشق له وينو ډک سوه ځيگرونه**
**ستا په لاره کې بايلي زلمي سرونه**
**تا ته راسمه زړگی زما فارغ سي**
**بې له تا مې اندېښنې د زړه مارونه**
**که هر څو مې د دنيا ملکونه ډېر سي**
**زما به هېر نه سي دا ستا ښکلي باغونه**
**د ډيلي تخت هېرومه چې راياد کړم**
**زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه**

يو ځل بيا د بابا اروايي تقلا او خوځښت د دوو روحي جاذبو ترمنځ: د يوه پياوړي افغاني حاکميت د جوړولو له پاره د سيمو نيول او فتوحات او بله خوا د کندهار هېوادنۍ جاذبه او هلته د متمرکز حکومت له نږدې ځارنه. دا ډول تلوسه تر ده وړاندې يوازې په غزنوي سلطان محمود کې گورو، گنې د هند لودي او سوري پادشاهان او بريخ نوابان خو د هند افسانوي ځلبل او جاذبې داسې جذب کړل، چې يوازې د همدې لوېي وچې د تاريخ يوه برخه وگرځېدل او بس.

احمدشاه بابا يوه بله اروايي وسوسه هم

لري، پوهېږي چې ژوند لنډ دئ او کارونه ډېر ورله غاړي دي. د دنيا په نامتو نړۍ نيوونکو او امپراتورۍ جوړوونکيو شاهانو کي مقدوني سکندر او بيا زموږ همدغه احمدشاه بابا لنډ عمرونه درلودل، مقدوني سکندر ملاريا يا کومي بلي ناروغۍ چې د هندوکش په لمنو کي پرې اوښتې وو کور ته پر لار وواژه، او احمدشاه بابا د پزې ناسور شوي زخم په پخه ځوانۍ کي د توبې په غره کي تحصن او بيا مرګ ته اړ ايست. دواړو لکه چې د خپل بېړني مرګ خوب ليدلی وو، مقدوني سکندر هم ډېره بېړه درلوده او ډېر ځله ئې لښکريانو ليدل، چې په خړ سهار کې به ئې موزې په پښو کړې او پراس به سپور وو، احمدشاه بابا هم غوښتل په لنډو کلونو کي ډېر څه وکړي، ځکه باور ئې درلوده چې:

**شېرين عمر چې تېرېږي درېغه درېغه**
**د اوبو په څېر بهېږي درېغه درېغه**
**ولي زړه په خبرنه دئ له رفتنه**
**چې دا هسې ژر تېرېږي درېغه درېغه**
**ولي هسې سوې بې غمه زما دله**
**عمرباد غوندي چلېږي درېغه درېغه**
**داياران لکه ګلونه د بهار دي**
**د خزان په تاو رژېږي درېغه درېغه**
**احمدشاه به څه هوس کا وخت د غم دئ**
**د بېلتون نوبت رغږېږي درېغه درېغه**

زه د بابا په شاعرۍ کي د تصويرونو او کلماتو تر شا د يوه ناکراره، خوځنده او سرګردانه اروا تصوير له ورايه وينم. که څه هم د هغه په رسمي او يا روايتي ژوندليکونو کي داسې څه لږ تر سرګه کېږي، خو تر شاعرۍ ئې پرته نوري نخښې هم شته، د هغه په ژوند کي د زمانې د نورو پاچايانو په څېر د بزمونو، عياشيو، وخت تېرولو، ښکارونو يا نورو وخت . وژونکيو بوختياوو کيسې ډېري نشته. بابا يا په فتوحاتو بوخت دئ، يا له نشت څخه د يوې افغاني ادارې د راجوړولو په کار. داسې ښکاري، چې د شاعرۍ ډېره برخه ئې د اس پر شا يا هم په هاغه ځانته وربېل کړي فکري وخت کي ليکلې، چې په پيل کي مو ورته اشاره وکړه. بابا خامخا يو خلوت درلوده. د بابا فکري او عرفاني شاعري د دې نخښه ده:

**تا وينښ کړی يم له خوابه**
**اې د زړه چنګ و ربابه**
**چې دا هسې دي اوترکړم**
**ستا د زړه کاسه خرابه**

له ځانګړي خلوت څخه زموږ هدف د بابا د فکري تمرکز فرصت او يوازيتوب دئ، د ادبياتو په اړه اروپوهنيزي څېړني رازده کوي، چې د عرفاني تمايل خاوندان د هستۍ د حقيقت په موندلو پسې په ځان کي ننوځي، دانته اليګيري په خپل روح کي ننووت او د جنت، دوزخ او برزخ سير و سلوک ئې وکړ، نيشاپوري شيخ فريدالدين عطار په خپل منطق الطير کي د سيمرغ اسطوره يي سېمبول په مرسته روحي سفر پيل کړ او د معرفت اووه ښارونه ئې وليدل، چې له عشق څخه پيلېدل. هغه شخصيتونه، چې له ځانه بهر بوخت وي، د معرفت په مرسته د رواني تکيې تلپاته تکيه ځای نه لټوي، بلکي پر لويو هېوادونو د دنيايي حاکميت ګرانبيه تختونه لټوي او د وجود دمه پرې جوړوي. د

احمدشاه بابا شاعري د دې ګواه ده، چې نوموړی د داسې تجملي تختونو پر سر د وجود دمه نه شي جوړولای، بلکې د روح دمه ځای لټوي، مانا د پاچاهي، جګړې او سیاست تر څنګ په خپل خلوت کې د هماغه سفر مساپر دئ، چې عطار، دانته او سنايي پکښې ستومانه وو . دبابا د روحي سیروسلوک دا شاهدکلام وګورئ:

**زړه مي ستا په هوا والوته مرغه سو**
**د عشق غم پرې راغی درست سره اوبه سو**
**دغه زړه مي لکه غر ډېر په ډاډه وم**
**اوس د عشق په اور ویلې تړې سکاوه سو**
**د عشق اور دي په لیدلو ښه بلېږي**
**بې لیدلو دي هم زړه پر تناره سو**
**هغه زړه چي مي د یار پر لوري ورک وو**
**چي د یار په لیدو راغلم، زړه بیا څه سو**
**اوس بې زړه زه په روڼا د دیدن ګرځم**
**که زړه راغی بې له یاره ملک تیاره سو**
**زړه و یار او یار د زړه سره خو یو دي**
**چي د زړه پر ځای یار راغی بیا زړه نه سو**
**احمدشاه په زړه خپل یار غوښت زړه ئې وریت کړ**
**ځکه ځان ئې ډوب د اوښیو په واله سو**

د شخصیت پېژندني له نظره، د احمدشاه بابا شاعري څرګندوي، چې ده د ژوند له پاره د هغو دسپلینونو خورا خیال ساته، چې ده په خپله ځانته جوړ کړي ول. له دې نظره ئې خورا منظبط شخصیت ګڼلی شو، د ده پر عکس خوشال خان خټک د یاغي او چوکاټ ماتوونکي روح خاوند شخصیت ښکاري.

ښايي د احمدشاه بابا د شخصیت همدغه اړخ وو، چې دی ئې په یوه ستر تاریخ جوړونکي سیاسي مشر بدل کړ.

د شخصیت څېړني له پاره په شاعرۍ کې د موتیفونو او ځانګړیو سېمبولونو مطالعه مرسته کوي.

راځئ د هغه یوه منظومه ګیله ولولو:

**راغله پر موږ یوه هسې ټګه زمانه**
**ډکه له بېقدرو له بې دردو همخانه**
**ده یو بې کماله د کمال پوښتنه نسته**
**روغه له احمقو له احمقو یګانه**
**زړه تړلی دا رنګ زمانې پوري عبث دئ**
**جوړه د حباب په دود لړ باد ئې بهانه**
**هغه چا چي زړه دئ په جهان پوري تړلی**
**سو خاوري د دهر له وطنه بېګانه**
**رایسه د وفا طمع تړې مه کوه احمده**
**بې وفا دنیا ده بې وفا ده زمانه**

د احمدشاه بابا له شاعرۍ څخه د هغه یوه بله رواني ځانګړنه له ورایه ښکاري، بابا له ډېرو جګړو، سختو مخالفتونو، تربور ګلویو، فتوحاتو، یاغي مخالفانو سره سره د خورا نرم او بخښونکي مزاج خاوند دئ، دی په خپل شعر کې د خپلو سوبو پر مهال د تورو، وژنو او متشددو صحنو ذکر نه کوي، که ئې ژوند لیک و نه ګورئ او له دېوان څخه ئې څلور پینځه سلنه شعرونه وباسئ، نو فکر به وکړئ، چې له یوه بې غرضه صوفي شاعر سره مخامخ یاست، نه له یوه داسي ستر لښکرمشر سره چې د سیمي تر ټولو سختسرو مرهټه ځواکونو سره د جګړې خیال په سر کې لري. زه فکر کوم، بابا پوهېده، چې جګړه د سیاست مجبوریت دئ او د ویاړلو ارزښت نه

لري، د بابا ژبه د جګړو په ذکر نه ګرځي، ځکه دی جنګ هدف نه، بلکي د انسان ژغورني له پاره وسیله ګڼي، د همدې له پاره ئې دېوان له جنګنامو او د تش په نامه حماسي لاپو شاپو څخه تر ډېره بریده یوې خوا ته ساتلی دئ.

د بابا د عاطفي او سوله خوښي مزاج تصویر په دې څوبیتونو کي وګورئ:

**په دا ډېر ښوراښور دي نه پوهېږم**
**هسي نرم زړګی چا کړې زما دله**
**لکه خپل کبلی چي ورک کاندي هوسی**
**هسي شان الا بلا کړې زما دله**
**لکه اور ته ناقراره ځي ستی**
**خواږه عمر وته شاکړې زما دله**
**بیا هله به ته د غم له ویره خلاص سي**
**چي د زړه ترکه هوا کړې زما دله**

د روایي شننو له مخي هغه مزاجونه کلک او متشدد وي، چي له مخامخ جنس سره د تحکم او برتر ځواک له دریځه مخامخېږي، خو هغه مزاجونه چي له نرمۍ، عاطفي پاروونو، په مخامخ جنس کي د میني او محبت د روحیې د ایجاد مزي ټینګولای شي، د نرم او عاطفي شخصیت خاوندان وي، په اوله ډله کي د تصاحب او مالکیت روحیه او په دوهمه ډله کي د میني او جذابیت روحیه پیاوړې وي، لومړۍ ډله خپل کام اخلي، سرېږي او عاطفي اړیکي هېروي، خو دوهمه ډله مینه کوي، خوند اخلي او له خپل مقابل لوري سره د دوامداري اړیکي او معنوي ارزښتونو پر بنا مناسبات ساتي. عجیبه خو ئې دا ده چي له مخالف جنس سره د زور او ځواک له دریځه مخامخېدونکي لومړۍ ډله اشخاص ډارن، فوبیایي او د رواني اختلالونو خاوند خلک وي، چي د سادیستي تمایلاتو کمزوري او ابتدایي اعراض پکښې سر راپورته کوي، حال دا چي دوهمه ډله عاطفي، راپاروونکي، جذاب او د مخالف جنس په وړاندي د پاسته دریځ خاوندان پر ځان ډاډه، ارام، زړور او د قوي ارادې خلک دي، که څه هم په دوی کي د نګه خوند اخیستلو تر بریده د مازوخیستي تمایلاتو لومړنۍ او په زړه پوري نخښې هم راڅرګندېدلای شي. احمدشاه بابا له دوهمي ډلي شخصیتونو څخه دئ، د ده یو غزل به د حسن ختام په توګه راوړم، چي هم ډېر ښکلی او له شاعرانه هنره مالامال کلام دئ او هم پکښې د ده جذاب، راپاروونکی، ارام، زړور او ډاډمن مزاج له ورایه ښکاري:

**سخ د ائینې دئ، چي دي تل و مخ ته ګوري**
**سخ د لونګین دئ، چي دي پاس پر سینه ښوري**
**نه دي ستا په غومو غټې غټې مرغلري**
**وصل دي په میاشتي پوري یو سر بل سر ستوري**
**روغ مي کړه له رنځه چي د خولې ښېرې دي واورم**
**شهدوشکر ورک کړه چي مي ستا شونډي وزوري**
**زه که ډوب په غم یم تل دي ډوب یم چي عاشق یم**
**تا دي خدای دلبره تل له هري بلا ژغوري**
**ظلم دي د دوو سترګو هرګوره پر ما زور سه**
**چیري توان مجال د زور و زر لري کمزوري**
**ما ته و ارزان دي بیا له مشک و تر عنبره**
**څوک که توري خاوري ستا د پله په بهار پلوري**
**درومي ستا و لور ته په ارمان ارمان کاته**
**سپین ئې په کاته سو احمدشاه د سترګو توري**

**پای**



استاد عبدالباري جهاني/امریکا

# سیداحمد بریلوي او هندوستاني مجاهدین

دوهمه برخه

د سیداحمد بریلوي او مولوي شاه اسماعیل وژل کېدل د دغه تحریک په تاریخ کي تر ټولو لوی ګوزار وو. که څه هم چي د تحریک نورو مشرانو او د سیداحمد پیروانو بیا هم، لومړی د سیکهانو او وروسته، د انګریزي استعمار پر ضد خپلو مبارزو او جګړو ته دوام ورکړ خو په حقیقت کي ئې هیڅ وخت بیا هغه پخوانی زور او برم پیدا نه کړ. د تحریک مشران او نور غړي لومړی د بالاکوټ څخه د ناندیر پر لور وخوځېدل او لس میاشتي هلته پاته سول. ځرنګه چي د هغه ځای قومي مشرانو او خانانو ئې ښه هرکلی و نه کړ او حتی دوی پر قومي مشر باندي شکمن سول نو پنجتار ته، چي مخکي سید احمد خپل د فعالیتونو مرکز پکښي جوړ کړی وو، وخوځېدل. هلته هم د ستونزو سره مخامخ سول او د امب د خان پاینده خان په بلنه هغې سیمي ته ورغلل. مجاهدین ډېر ژر متوجه سول چي پاینده خان یوازي د خپل رقیب خان د وهلو له پاره د دوی له وجود څخه ګټه اخلي، ځکه ئې نو د امب سیمه پرېښووله او په سیتانه کي د خپل زاړه دوست سید اکبرشاه سره، چي تر مرګه پوري د سیداحمد بریلوي تحریک ته وفادار پاته سو، دېره سول. د تحریک غړي تر ۱۸۳۸ کال پوري په سیتانه کي پاته سول. البته په دغه وخت کي هم د قبایلو ځینو خانانو، په زیاته بیا فتح خان، د مجاهدینو د آزارولو او د مرستو د کاروانونو له لوټلو څخه، چي د مجاهدینو له پاره ئې حیاتي اهمیت درلود، لاس نه اخیست. مجاهدینو بالاخره له فتح خان سره د جنګ کولو فیصله وکړه او په هغه جنګ کي چي د ټوپي په کلِي کي وسو. فتح خان د مجاهدینو ټول لښکر تباه کړ او د هغوی مشر نصیرالدین په جنګ کي ووژل سو. له دې جنګ څخه وروسته، د مجاهدینو مشري یوه بل

نصیرالدین ته، چې په ډهلي کې د یوې مشهورې روحاني کورنۍ غړی وو، وسپارل سوه.

دا وخت د امیر دوست محمد خان او انګرېزانو ترمنځ اړیکې خراب سوي او انګریزانو امیر ته د جنګ اعلان ورکړی وو. امیر له مجاهدینو څخه د مرستې غوښتنه وکړه. څرنګه چې نصیرالدین او د بریلوي د تحریک نور مشران د انګریزیانو پر ضد له هر چا سره لاس یو کولو ته تیار وه نو له زرو تنو ملګرو سره د افغانستان پر لور وخوځېدی. په خپله ئې ډاډر ته نیژدې مرکز ونیوی او خپل درې سوه ملګري ئې د غزني څخه د دفاع له پاره د هغه ښار شاوخوا ته ولېږل. کله چې انګریزي قواوو د غزني پر قلا باندې یرغل وکړ او هغه ئې فتح کړه د نصیرالدین درې سوه مجاهدین ټول په هغه جنګ کې ووژل سول.

(Wahabi Movement p ۸٦)

نصیرالدین او د هغه پاته ملګرو ځانونه سیتانې ته ورسول. مجاهدینو هغه د خپل مشر په حیث وټاکی، خو هغه ډېر ژر وفات سو او د تحریک مشرتوب اولاد علي او د هغه ورور ولایت علي پر غاړه واخیست. په سیتانه کې د مجاهدینو دغه کلونه یو څه د آرامۍ او د هند څخه د رارسېدونکو مالي مرستو او د مجاهدینو د لښکرو سره د نورو داوطلبو ځوانانو د یو ځای کېدلو کلونه وه. عنایت علي خپلې قواوې را غونډې کړې او په هغه سیمه کې ئې ډېرې زیاتې کلاوې او کلي د سیکهانو له کنټرول څخه وایستل. البته د ۱۹۳۹ کال د جولای په میاشت کې د رنجیت سینګ له مرګ څخه وروسته د سیکهانو د مشرانو تر منځ بې اتفاقیو او پرله پسې کودتاګانو د سیکهانو مرکزي حکومت ډېر کمزوری کړی وو او ګه چیرې پښتنو تر یوه واحد بیرغ لاندې حرکت او مقاومت کړی وای نو ښایي چې، د سیداحمد بریلوي د ارزو سره سم ئې، د انګریزي استعمار په مقابل کې یو ډېر قوي سنګر ایجاد کړی وای: خو پښتانه او د هغو خانان زیاتره د خپلو قبیلوي او قومي ګټو له پاره جنګېدل. په افغانستان کې د پښتنو مرکزي دولت په خپله د کابل، کندهار او هرات د قدرت پر مرکزونو وېشل سوی وو، چې نه ئې له مجاهدینو سره مرسته کولای سوای او نه مجاهدینو له هغوی سره منظم اړیکې درلودل. د پښتني قبایلو مشرانو او خانانو ټولو ځانونه واړه او لوی پاچهان ګڼل چې چا له سیکهانو او چا له انګریزانو سره اړیکې درلودلې او چا ځانونه مستقل بلل او یوازې یې له خپلو قومي او شخصي ګټو څخه دفاع کوله. هر وخت له هر هغه چا سره اتحاد کولو ته تیار وه چې د دوی قومي، او زیاتره آني، ګټې ئې خوندي کولې. عنایت علي په دغو شرایطو کې، بیا هم، دونه قوت پیدا کړی وو چې د سیکهانو قوماندانانو ته ئې لیکونه واستول او له هغوی څخه ئې د تسلیمېدلو غوښتنه وکړه. ځینو سیکه مشرانو هغه ته نرم او د روغې جوړې له کلماتو ډک جوابونه او لیکونه واستول او ځینو ئې غوښتنې رد کړې. د ۱۸۴۶ کال په اوړي کې د سیکهانو یوه لویه قوه د پکلي سیمې ته ورسیده. د پښتنو ځیني قبایلي قواوې د مجاهدینو څخه بېلې او له سیکهانو سره یو ځای سوې او کله چې مجاهدینو له هغوی څخه د عشر غوښتنه وکړه نو دوی په جواب کې ورته وویل چې یو ځل سیکهانو ته ماته ورکړئ او بیا به نو موږ عشر درکړو. د مجاهدینو د نسبتاً کم شمېره او په سپکو وسلو سمبالو عسکرو په مقابل کې نهه سوه سپاره او پنځه زره پیاده سیکهان راووتل او د هغوی تر شا دوولس زره پښتانه قبایل، چې په ښکاره د مجاهدینو ملګري او په پټه ئې له سیکهانو سره تفاهم درلود، ولاړ وه. په لومړي سر کې داسې ښکارېدله چې مجاهدین به د سیکهانو د منظمو عسکرو او درنې توپخانې په مقابل کې مقاومت و نه کړای سي او حتی یو ځل خو ئې بیرغ هم پر مځکه ولوېدی خو ډېر ژر د جنګ نتیجه د مجاهدینو په ګټه سوه او د سیکهانو منظمو پوځونو د ځانونو د

خلاصولو له پاره لار نه سواى پيدا کولاى او په زرهاوو مړي ئې ور کړل.

په منافقو خانانو کي، چې د سيکهانو طرف يې نيولى وو، نواب خان تناولي، مدد خان او محمدعلى خان ونيول سول او ټول ئې عنايت علي ته را وستل خو هغه د امير خان په منځګړتوب ټول وبخښل. (Ibid pp ۱۱۰- ۱۱۱)

عنايت علي او د سيد احمد بريلوي نورو پيروانو په سيتانه کي د سيد اکبرشاه او د هغه د ځلورو ورونو په مرسته، چې ټولو د مجاهدينو له تحريک سره بيعت کړى وو، خپل د تبليغاتو او عملياتو مرکز جوړ کړ. په ۱۸۴۸ کال کي چې د سيکهانو دولت له بشپړي کمزورۍ سره مخامخ سو، او حتى نور د دولت حساب نه ورباندي کېدى، انګرېزانو پښور په مستقيمه توګه لاندي کړ او په دې توګه ټول پښتانه، مجاهدين، د سوات اخوند صاحب او سيد اکبر شاه له يوه لوى او مستقيم خطر سره مخامخ سول. د سوات اخوند صاحب په سيدو کي د سوات او بونير د قومي مشرانو يوه لويه غونډه راوبلله. په دې غونډه کي د باجوړ او دير خانانو هم برخه درلوده او اخوند صاحب رابللي جرګې ته وويل: "اوس هغه وخت را رسېدلى دئ چې موږ د خپل شاوخوا خطرونو او تهديدونو ته متوجه سو. برتانيه زموږ په خاوره کي دننه خپلي منګولي ټينګوي. موږ بايد خپل اختلافات او دښمنۍ شا ته پرېږدو او د هغوى په مقابل کي په يوه اواز وجنګېږو. کنه نه موږ موږ به د اسلام د دغو دښمنانو غلامان سو. دا د وخت ضرورت دئ چې موږ بايد يو اسلامي دولت جوړ کړو. دا سي يو دولت چې نه يوازي اسلامي وظايف سر ته ورسوي بلکي زموږ ګټي خوندي کړي او موږ د برتانيې له تابعيت ځخه وساتي. که موږ لږ معطلي او ټنبلي وکړو نو تاوانونه به ئې ووينو. او بيا به د ژغورني له پاره هيڅ چاره نه وي او د ټولو بدو عواقبو مسئوليت به مو په غاړه وي".

د اخوند صاحب دغي وينا خپله اغيزه وښندله او د يوسفزيو خانانو او مشرانو په يوه آواز د يوه اسلامي دولت د جوړېدلو د غوښتني ملاتړ وکړ. خو د امير ټاکل ډېره حساسه موضوع وه. د غونډي ګډون کوونکو له اخوند صاحب ځخه وغوښتل چې د دغه نوي تاسيسېدونکي اسلامي دولت مشرتوب پر خپله غاړه واخلي. خو اخوند صاحب دغه مسئوليت ته غاړه نه اېښودله او په عوض کي سيد اکبرشاه، چې يو منلى محترم مذهبي او سياسي مشر وو، د اخوند صاحب په پېشنهاد، د نوي دولت د مشر په حيث وټاکل سو.

(The Story of Swat pp ۴۶- ۴۷)

د سوات د اخوند صاحب په پېشنهاد جوړ سوى حکومت له لومړۍ ورځي د ستونزو سره مخامخ وو؛ ځکه چې دا حکومت د پښتنو پر خپل قبايلي زور او غوښتنو ولاړ نه وو. منظم پوځ ئې نه درلود. مشران ئې د پښتنو له خپل قومي ترکيب ځخه نه وه راوتلي. هر مشر او خان د زمان د شرايطو او غوښتنو او خپلو قبيلوي اړتياوو او دلچسپيو سره سم دغه اسلامي حکومت ته کله ډېر او کله لږ پوځونه او مالي مرستي ورکولې. د پښتنو پوځي قواوي به کله تر پنځه ويشتو زرو پوري ورسېدلې او کله به ئې دوه زره هم نه سواى پوره کولاى. تر ځو چې په ۱۸۵۷ کي د سيد اکبر شاه د ناڅاپي مړيني سره د سوات اسلامي حکومت پر مخ سقوط وکړ. ځکه چې اخوند صاحب نه د سيداکبر شاه د زوى مبارک شاه ملاتړ وکړ او نه ئې خپل مشر زوى عبدالحنان ته اجازه ورکړه چې د سوات د اسلامي حکومت د مشرتوب چاري پر غاړه واخلي.

سيد اکبرشاه په داسي وخت کي وفات سو چې انګرېزان په هند کي په خپل پوځ کي د ښورښ او له عمومي قيام سره مخامخ وه. دوى د اکبرشاه مړينه يوه نيکمرغه پېښه بولي او وايي چې که په هغه وخت کي سيد اکبرشاه ژوندى واى او د سرحد پښتانه د يوه مشر تر بيرغ لاندي را غونډ سوي واى

نو د دوی له پاره به دا یوه لویه فاجعه وای، ځکه چي دوی د اباسین پر پوري غاړه یوازي درې کنډکه عسکر درلودل. د بېلو بېلو قبیلو تر منځ شخړو او جګړو د دغه راز یوه اتحاد مخه ونیوله او د سوات قبایلو تر ۱۸۶۳ کال پوري چنداني لویې ستونزې پیښې نه کړې.

(Afghan and Pathan p ۸۳)

انګرېز مؤرخین او رپوټ لیکونکي وایي چي که په دغه وخت کي، چي د هغوی له پوځ څخه پنځه پنځوسمه یاغي سوې پیاده قوه هم د پښتنو سیمي ته ورغلې وه، سید اکبرشاه او د سوات اخوند صاحب لاسونه یو کړي او د انګریزانو پر ضد ئې جهاد اعلان کړی وای نو ډېري لویي ستونزي به ئې پېښي کړي وای. خو نه د سوات اخوند صاحب او نه د سوات مشرانو سید اکبر ته دا موقع ورکوله چي د انګرېزانو څخه یاغي سوې منظمه قطعه دي په لاس کي ولري. اکبرشاه وفات سوی وو او د سوات خانانو، د اخوند صاحب په مرسته، لومړی د اکبرشاه زوی مبارک شاه له سوات څخه وایستی او وروسته ئې د یاغي سویو عسکرو پنځه پنځوسمه قطعه د سوات له سیمې څخه پسي واخیستله. هغوی د کشمیر لاره ونیوله او غوښتل ئې چي د مهاراجا ګلاب سینګه څخه پناه وغواړي، خو کشمیر ته له رسېدلو څخه مخکي ټول په لاره کي تباه سول. (Expedtitions p ۲۱۳)

د پېښور کمیشنر ډګرمن ایډوارډز Lieut.Colonel H.B. Edwardes وایی که په دغه وخت کي د سوات اخوند صاحب د اسلام د یوه قهرمان په حیث رامخته سوی او زموږ پر ضد ئې جهاد اعلان کړی وای، په داسي حال کي چي د پنځه پنځوسمي یاغی سوي قطعې مرسته هم ورسره وای، نو زموږ په اتباعو کي به ئې داسي مذهبي جذبه را پیدا کړې وای چي کرارول به ئې تقریباً غیر ممکن وای خو اخوند د کراري لاره ونیوله او د سید اکبرشاه زوی او یاغي سوي عسکر ئې یو ځای له سوات څخه وایستل. ( Iibid p ۳۵۳)

د سوات اخوند صاحب تر ۱۸۶۳ کال پوري، چي انګرېزانو پر بونیر او شاوخوا سیمو باندي د پنجدره یا امبیله کوتل په نوم عملیات پیل کړل، زیاتره په خپل عبادت اخته وو، ځکه چي د هندوستاني مجاهدینو د عقایدو سره ئې اختلاف درلود او خان ئې د هغوی له جنجالونو څخه نسبتاً لیري ساتلی وو. خو د همدغه کال د اکتوبر په میاشت کي د بونیر پر سیمه باندي د سر نیویل چمبرلین Sir Neville Chamberlain په قوماندانۍ عملیاتو له پیل کېدلو څخه مخکي د بونیر ملکانو او مشرانو اخوند صاحب ته په جهاد کي د برخي اخیستلو بلنه ورکړه نو اخوند صاحب هم مجبور سو چي له هغوی سره ملګری سي. ځکه چي، که اخوند صاحب د مهابن او بونیر له خلکو سره ملاتړ نه وای کړی نو په ټوله سیمه کي د پښتنو مشري د سید اکبرشاه زوی سید مبارک شاه اخیستله. د انګریزي استعمار پر ضد هغه عملیاتو کي، چي ښایي د هندوستاني مجاهدینو د مبارزو په لړ کي یو له تر ټولو لویو او له تلفاتو څخه ډک عملیات وي، څه باندي لسو زرو پښتنو، د خپلو خانانو او ملکانو تر مشرۍ لاندي، برخه واخیستله.

(Report on the Tribes of Dir... pp ۷۴- ۷۵)

اخوند صاحب په دغه وخت کي یوه اعلامیه خپره کړه او وې ویل چي هر څوک چي د ده له کمپ څخه وتښتي د هغه ټوله شته مني به ضبطیږی. هغه د بونیر د قبایلو دا پیشنهاد رد کړ چي ویل ئې د انګریزانو سره باید یو څه روغه جوړه وسي او وې ویل چي که له دښمن سره هر ډول موافقه وسي دی به ئې و نه مني.

(Expeditions p ۲۷۰)

انګرېزانو د هندوستاني مجاهدینو پر ضد، چي دا وخت ئې یوازینی هدف د هند له تولي خاوري څخه د انګرېزي پوځونو ایستل وه، د امبیله په څېر سخت او پراخ عملیات نه وه کړي. په هیڅ ډول نورو عملیاتو کي ئې نه په دغه شمېر عسکر د جنګ میدان ته ایستلي او نه ئې په دغه اندازه پیسې لګولي وې. په حقیقت کي دا عملیات یوازي د هندوستاني مجاهدنیو د ریښو ایستلو ته متوجه وه. پخواني عملیات به هم د قبایلو د ښورښونو او حملو ختمولو او هم به د مجاهدنیو څپلو ته متوجه وه او زیاتره هدف به ئې څکه قبایل وه چي هغوی به د مجاهدینو ملاتړ کاوه. خو د امبیله په عملیاتو کي اصلي هدف د مجاهدینو څېل وه څکه چي هغوی د انګریزانو پر ضد قبایل سره یو موټی کړي وو؟(Wahabi Movement p ۱۹۴)

د امبیله عملیات، د انګرېزانو د انتظار پر خلاف، ډېر اوږده سول. هغوی ته پخوانیو تجربو ښودلې وه چي قبایل اوږده جنګونه نه سي کولای. د کلیو څخه راغلیو قبایلي جنګیالیو به معمولاً له خانونو سره د څو ورځو خرڅ خوراک اخیستی او څو ورځي وروسته به د منظمو اکمالاتو د نسته والي له امله، له هره پلوه، له ستونزو سره مخامخ کېدل او مجبور وه چي د جنګ له میدان څخه ووزي. خو دا عملیات چي د جلال الدین اکبر د زمانې راهیسي ئې په دغه سیمه کي ساری نه وو لیدل سوی څه باندي شپږ هفتې اوږده سول. پښتنو قبایلو، په خپلو هغو سپکو وسلو او حتی تورو، ډبرو او لرګیو، د انګریزانو د توپخانې، درنو وسلو او منظمو عسکرو سره مقاومت کاوه او د انګریزانو شپږ زره کسیزه قوه ئې څو څله پر شا کړې وه. د کریګ پر کوتل او د ګوربت د څالي په نوم غره باندي ډېر سخت جنګ روان وو. انګریزانو د کریګ پر کوتل باندي، چي ستراتیژیک اهمیت ئې درلود، څلور څله سخته حمله وکړه او درې څله بېرته پښتنو غازیانو ور څخه اشغال کړ. د کریګ پر کوتل باندي په جنګونو کي د انګرېزانو نهه سوه عسکر او صاحب منصبان قتل سول او حتی د انګرېزي قواوو عمومي قوماندان جنرال نیویل چمبرلین ډېر سخت ټپي سو. د پښتنو قبایلو او مجاهدینو تلفات د انګرېزانو څو چنده وه او له دغه امله د کریګ کوتل وروسته په قتل ګړ مشهور سو. انګرېزي صاحب منصبان، رابرټس او ینګ هزبیند، چي په دغو جنګونو کي ئې برخه درلوده، په خپلو خاطراتو کي د پښتني قبایلو د ځوانانو او جنګیالیو د مړاني او سرښندني یادونه کوي.

(The Pathans p ۳٦٦)

د جنرال چمبرلین ټپي کېدلو او د انګرېزي قواوو پرله پسې تلفاتو د پېښور ایالتي حکومت داسي وارخطا کړی وو چي د جنګ له میدان څخه ئې د عقب نشینی خبري کولې. خو د تقویتي قواوو را رسېدلو، انګرېزان له دې شرموونکي ماتې څخه وژغورل. د بلې خوا له انګرېزي قواوو سره دا ېېره وه چي که دا جنګ ډېر دوام وکړي نو احتمال لري چي د دوی مسلمان او په تېره بیا پښتانه عسکر یوه ورځ له خپلو پښتنو ورونو سره یو ځای سي او لوی سیاسي خطر رامنځته کړي.

(Wahabi Movement p ۲۰۵)

که څه هم چي انګرېزانو په دغه وخت کي د جنګ په جبهه کي تقریباً نهه زره په درنو وسلو سمبال عسکر ګومارلي او پښتنو ته هم ډېر زیات تلفات رسېدلي وه خو د جهاد او مقاومت روحیه کمزوري سوې نه وه. تر څو چي بالاخره د پېښور کمیشنر Major H.R. James ایچ آر جیمز د خانانو او مشرانو سره پټ تماسونه پیل کړل او د پیسو او رشوت په زور ئې څیني مهم خانان او مشران له عمومي تحریک څخه بېل کړل. احمد خان د بونیر د اشیزیو او سالارزیو له قبیلو سره د جنګ څخه پر شا سو. د سوات رانیزي، چي شمېر ئې دوو زرو ته رسېدی، خپلو کورونو ته ستانه سول. صحبت خان خپل نژدې ملګري د جنګ له

میدان څخه وایستل او ځینو ورو خانانو هم د هغوی لاره تعقیب کړه. د نومبر پر پنځه ویشتمه د مقاومت د قواوو د جرګې او انګریزانو تر منځ خبرې پیل سوې او داسې ښکار هدله چې، د زیدالله خان په شمول، ځینې لوی مشران به د روغې جوړې لاره ونیسي. په دغه وخت کې د مجاهدینو پوخي مشر مولوی عبدالله، زیدالله خان ته اطلاع ورکړه چې، د هغه رقیب، احمد خان ډېرې زیاتې پیسې اخیستې دي. په دې توګه مذاکرات ناکام سول او احمد خان له ډېرو زیاتو قبایلي کسانو سره له جنګ څخه پر شا سو. البته د مقاومت قواوو خپل دغه کمبود بیرته پوره کړ او په دغه ترڅ کې د فیض طلب خان تر مشرۍ لاندې د باجوړ څخه تقریباً درې زره جنګیالي له مجاهدینو سره یو ځای سول. د کونړ حاجي صاحب له پنځو سوو ملګرو سره د مجاهدینو سره یو ځای سو او د مقاومت د قواوو روحیه ډېره لوړه سوه. خو د جیمز رشوتونو او له خانانو او مشرانو سره د هغه پټو تماسونو د پښتنو قواوې دوڼه سره وېشلي وې او د هغوی تر منځ ئې بې باوري دونه زیاته کړې وه چې هغوی د حملو د بیرته پیل کولو توان له لاسه ورکړی وو. (Expeditions pp ۲۷۳- ۲۷۴)

د دې جنګونو په اړه ښایي ډېرې زیاتې چاربیتې ویل سوي وي؛ په هغو څو چاربیتو کې چې جیمز ډارمستېټر ساتلي دي هم د هندوستاني مجاهدینو محبوبیت، هم د انګرېزي پوځیانو وارخطایي او تلفات او هم د پښتنو د خانانو عظیم خان، زیدالله خان او غزن خان نوموړنه راغلي دي چې په لومړي سر کې د مجاهدینو سره ملګري او وروسته ئې خیانت کړی او له جهاد څخه بېل سوي دي. موږ به د څو چاربیتو څخه یو څو نمونې دلته راوړو:

راغلي دي غازیان د فیرنګي په دغه ګړ باندي
اوړي قتل ګړ باندي
تور ئې نه وه د اولیاوو کرامت ورسره
ډېر ئې وو قوت ورسره
مولا به حوري ورله ورکړي هم جنت ورسره
مرګ د شهادت ورسره
مولیان مړه شو غګ ئې خور شو په کنړ باندي
اوړي قتل ګړ باندي (هارو بهار: ۱۶مخ)

د حمید ګل شاعر په چاربیته کې د مجاهدینو ستاینه سوې او خاین خانان غندل سوي دي:

معامله جوړه شوه د کفر د اسلام
ته صاحب له برې ورکړې پروردګاره
مجاهدین وایي زموږ مرګ د شهادت
په شهادت کښې تیښته نه کړو له میدانه
که راسره وي د مردانو کرامت
په غزا پسې راتلو له هندوستانه
باج ګټه کښې عظیم خان شه په لعنت
بدي وشوه د ډګر له زیدالله نه
په انبیله کې صاحب وښوه مقام
چې لښکري وله راغلې بیشماره (هاروبهار: ۱۸)

دغه راز د نواب جان په چاربیته کې د قتل ګړ د جنګونو، تلفاتو او انګرېزي پوځ د وارخطایي یادونه سوې ده:

په سر د قتل ګړ فرنګي ډېر وکه ارمان
شوه چیغه د خطر پسې
په ستر ګو یې تیاره شوه چې لیدل به ئې غازیان
غم راغی سراسر پسې
په سر د قتل ګړ فرنګي جمعه کړل فوځونه
دی لام تړي په پورته
له ورایه به راتلله بنیروال لکه بازونه
حیران یې شومه زور ته
چاپیره له زلمو سره پیټی چغر ډالونه
جلی به شوې هر لور ته
ګولی به د رایفلو اورېدې لکه باران
راتلل به برابر پسې
په جهر ووې جرنیل چې ساه مې نشته په وجود کښې
دا څه وشو پسات

لښکر مې شه کسکر نور به یې نه ګرزم په سود کښې
رعیت مې نه که سوات
مردار پکښې خاونده د لاهور هغه مردود کښې
په بیرته به شي مات
ملاتړ وکه په خوړ د برکلي ناصر خان
ور ګډ شه مازدیګر پسې (هاروبهار: ۲۰مخ)

د انګریزانو د بې شمېره منظمو پوځونو او وسلو سره د پښتنو د غیر منظمو قبایلي لښکرو مقاومت، په داسي حال کي چي د پښتنو قبایلو لویو خانانو او مشرانو خیانت لا هم وکړ او د مجاهدینو له صف څخه ببل سول، تقریباً غیرممکن وو. د ډسمبر پر لسمه د بونیر د قبایلو جرګې له انګرېزانو سره ومنله چي د انګریزانو قواوي به د ملکه تر کلي پوري بدرګه کوي او د ملکه کلی به، چي د هندوستاني مجاهدینو مرکز دئ، تباه کوي. او دغه راز به هندوستاني مجاهدنیو ته په خپل وطن کي ځای نه ورکوي.

د پښتنو ځینو مشرانو، د سوات اخوند صاحب او هندوستاني مجاهدینو دا جوړه و نه منله. غازان خان، چي شپږ زره جنګیالي ئې درلودل، د جرګې فیصله رد کړه او پښتنو بیرته د جنګ له پاره تیاری پیل کړ. البته د انګرېزي قواوو سره، چي دا وخت ئې د جنګ د جبهې هري برخي ته دوه درې زره په عصري وسلو سمبال عسکر لېږلي وه، مقاومت ډېر ګران او حتی غیر ممکن کار وو. که څه هم چي هندوستاني مجاهدینو او قبایلي جنګیالیو یو ځل د دښمن په توپکو او توپونو سمبالو عسکرو باندي په تورو حمله وکړه. څو تنه انګرېز صاحب منصبان ئې قتل او ټپیان کړل او په خپله ټول دوه سوه تنه قتل سول، خو دغه راز حملو یوازي د خانونو د وژلو معنی درلوده.

(Expeditions p ۲۸۳)

د ډسمبر پر پنځه لسمه او شپاړسمه د مجاهدینو، اخوندصاحب او قبایلو د لښکرو شمیر پنځه لسو زرو تنو ته رسېدی. خو د بونیروالو د تسلیمېدلو سره قومي مقاومت کمزوری سو او کله چي د ډسمبر پر اووه لسمه د بونیروالو جرګې د میجر جیمز سره د ملکه د سیمي، چي د هندوستاني مجاهدینو تر ټولو غښتلی سنګر وو، د ورانولو په باب خبري وکړې نو په قبایلو او مجاهدینو کي د مقاومت توان پاته نه سو. بونیروالو د انګریزي قوواوو سره ومنله چي:

۱: د بونیر پر لوړو څوکو به هر ډول لښکري منحلوي او رخصتوي.

۲: یوې ډلي ته به وظیفه ورکوي چي ملکه په بشپړه توګه تباه کړي او له دې ډلي سره به انګرېزي افسران هم ملګري وي څو د ملکه د تباه کېدلو څار نه وکړي.

۳: ټول هندوستاني مجاهدین به له بونیر، چملې او د آمازو له سیمو څخه باسي.

۴: خپل ټول مشران به، د دغو وعدو تر بشپړولو پوري، انګریزانو ته د یرغمل په توګه پرېږدي. (Ibid p ۲۸۵)

د ملکه د ورانزدلو څخه وروسته هندوستاني مجاهدین، د مولوي عبدالله په مشری، د چغرزیو سیمي ته وکوچزدل او چغرزیو د تانګورا او باتورا کلي، د اوسېدلو له پاره، ورکړل. چغرزیو د دې مرستي په بدل کي له مجاهدینو څخه څلور کاله ډېري زیاتي پیسې تر لاسه کړې او د مولوي عبدالله هندوستاني ملاتړ کوونکو ایله وکړای سوای چي دوی ته مرستي او وسایل ورسوي. دا وخت د سوات اخوند صاحب هم له هغوی سره څرګند مخالفت پیل کړ او د هندوستاني مجاهدینو او کوټه ملا (سید امیر) پر ضد ئې تبلیغاتو ته زور ورکړ. هغوی ئې وهابیان او حتی کافران وبلل. سید جمال الدین افغاني په خپل کتاب کي د اخوند صاحب دریخ ته ډېره ښه اشاره کوي او وایي اخوند صاحب هر هغه شیخ چي د افغانانو په ښارونو او شاوخوا کي مشهور سي او دی پوه سي چي د هغه شهرت د ده قدرت ته تاوان رسوي نو سمدستي د وهابي نوم ورباندي

ایږدي او خلک ورځخه بیزاره کړي او په ډېر بد شکل ئې بدناموي. (تتمة البیان : ۱۷۲مخ).

کله چې مجاهدینو په ۱۸۶۸ کال کې یو ځل بیا د بونیر په سیمه کې مرکز جوړ کړ اخوند صاحب یو ځل بیا هغوی له بونیر څخه وتلو ته مجبور کړل. که څه هم چې اخوند له مجاهدینو سره ژمنه کړې وه چې د باجکټه له سیمې څخه د پر شا کېدلو او وتلو په وخت کې به غرض نه ورسره کوي خو هغوی ایله یوه ورخ مزل کړی وو چې د اخوندصاحب لښکرو او طرفدارانو حمله ورباندي وکړه او پنځه شپږ سوه تنه ئې پکښې ووژل. (Expeditions p ۲۹۸)

د مجاهدینو تحریک د انګریزانو د منظمو پوځونو او درنو عصري وسلو د حملو، د اخوندصاحب د منفي تبلیغاتو او یرغلونو او د پښتني قبایلو د خانانو او مشرانو د پرله پسې خیانتونو او ناځوانیو سره سره د نونسمي پېړۍ تر پایه او د شلمي پېړۍ تر لومړیو کلونو پوري خپل ژوند او مبارزو ته دوام ورکړ. حتی انګریز مؤرخ ډاکټر هنټر، چې د هندوستاني مجاهدینو سره سخته دښمني ښيي، هم د هغوی ارادې او سربښندني ته درناوی کوي او دا مني چې له پټنې څخه تر صوبه سرحد پوري، چې تقریباً دوه زره میله فاصله ده، په غرونو، دښتونو او ځنګلونو کې مزل کول او ځان خپلو ملګرو ته رسول د ټوکو خبره نه ده. (The Indian Musalmans p ٦٣ b)

یحیی علي په بنګال کې د سیداحمد بریلوي د تحریک خلیفه او مشر وو. هغه هم په صوبه سرحد کې د مجاهدیونو له پاره د زکوت او سرسایې پیسې ټولولې او هم ئې له بنګال څخه زلمیان ورلېږل. له پټنې څخه، چې وروکی ګودام ئې باله، تر صوبه سرحد پوري، چې لوی ګودام بلل کېدی، دوه زره میله فاصله وه؛ او یو بنګالی په دغه لاره کې له سلو، رنګ په رنګ، سوالونو سره مخامخ کېدی؛ ځکه چې په هر کلي کې هم د هغه رنګ او قیافې او هم د هغه ژبې، چې څوک نه په پوهیدل، د خلکو سره شکونه پیدا کول. یحیی علي له پټنې څخه تر صوبه سرحد پوري داسي سستم جوړ کړی وو چې په هره منطقه او کلي کې ئې خپل باوري کسان درولي وه او خپل پیروان یې تر لوی ګودام پوري رسول. (هغه کتاب : ۸۴مخ).

هر څوک به چې هر ځای ونیول سو، ځان ئې مرګ ته ورکاوه خو خپل مشر یا مشران ئې نه رسوا کول. (Ibid p۹۲)

د بنګال د لیري لوېدلي ایالت څخه ډلې ډلې کسان د سرحد لوري ته لېږل کېدل. د هر کلي څخه تقریباً هري کورنی له مجاهدینو سره مرستې کولې. ډلې ډلې کسان په بندیخانو ننوتل او د انګریزانو محکمو په سل هاوو کسان د هند د سمندر په وړو ټاپو ګانو کې په عمر قید محکوم کړل؛ خو بیا هم ټول بنګال له هغوی سره مالي مرستې کولې او زلمیان ئې ورلېږل او په صوبه سرحد کې ئې د مسیحیانو د حکومت پر ضد اسلامي جګړې ته دوام ورکاوه. (Ibid p ۱۱٦)

د هندوستاني مجاهدینو تحریک یوازې په بنګال، بیهار، پنجاب، صوبه سرحد او مدراس پوري محدود نه وو بلکي تر دکن پوري ئې لمن غځیدلې وه؛ او خلک دونه پر خروښ راغلي وه چې ویل کېږي ښځو خپلې ګاڼې خرڅې کړې او د مجاهدینو له تحریک سره یې مرستي وکړې. (History and Culture of Indian People p ۹۰۱)

د ۱۸۶۴ کال د مې په میاشت کې د مجاهدینو مشران شفیع محمد، محمد جعفر او یحیی علي په اعدام محکوم سول او باقي اته تنه نور مشران ئې د انډیمان په ټاپو ګانو کې په عمري بند محکوم سول او د ټولو شتمنی ضبط سوې. Ibid p ۸۹۸

کله چې د ۱۸۷۲ کال د مې په میاشت کې د شېرعلي په نوم یوه پښتانه، د هند ګورنرجنرال لارډ مایو، د انډیمان د ټاپوګانو په مرکز کې په چاړه وواهه او مړ ئې کړ؛ سره له هغه چې د انګرېزانو حکومت د شېرعلي او هندوستاني مجاهدینو تر منځ ارتباط ثابت نه کړ خو د هغوی تعقیب، محاکمو او آزار ته ئې زور ورکړ. د دې اقداماتو په نتیجه کې د مجاهدینو تحریک ډېر کمزوری سو او ضمناً د سوات اخوند صاحب د انګریزانو سره داسې تفاهم ته ورسېدی چې هندوستاني مجاهدین به، په بونیر کې، د خپلو مرکزونو څخه شړي، نو دوی مجبور سول چې د پالوی او میدان په سیمو کې واړه مرکزونه جوړ کړي. که څه هم چې په ۱۸۶۵، ۱۸۸۵ او ۱۸۹۸ کلونو کې د پښتنو پر ضد د انګرېزانو په حملو کې د هندوستاني مجاهدینو اغېزه لږ وه خو هغوی بیا هم د قبایلو سره د انګرېزانو پر ضد جګړو کې برخه واخیستله او ډېر زیات یې د جنګونو په میدانونو کې ووژل سول. (Ibid p ۸۹٦)

عبدالله او د هغه هندوستاني مجاهدینو د سوات د اخوند او د پښتنو قبایلو له لاسه، چې زیاتره به اخوند تحریکول، ډېري بدي ورځي ولیدلې. عبدالله او د هغوی نور مشران د تسلیمېدلو خلک نه وه او خپل ټول ژوند ئې یوه ارمان ته وقف کړی وو. مجاهدینو ته پرته له جګړې بله لاره نه وه پاته. هغوی خپلو کورونو ته ستانه کېدلای نه سوای او حکومت هم نور له هغوی سره هیڅ ډول روغي جوړي ته تیار نه وو. مجاهدین د بنې ډېري مودې له پاره د حسن زیو د پالوسي په سیمه کې پاته سول او تر یوې اندازې یې خپلې قواوې تنظیم کړې خو په هغه سیمه کې هم د اخوند له آزار او مخالفت څخه بېغمه نه وه. بالاخره په ۱۸۹۱ کې پر تور غره باندې د انګرېزي قواوو د څلرم ځل عملیاتو په نتیجه کې مجاهدین ډېر کمزوري سول او حسن زي هم مجبور سول چې مجاهدین له خپلې سیمې څخه وباسي. عبدالله ډېرو زیاتو قبایلي مشرانو ته د ځای او مځکو ورکولو له پاره خواستونه وکړل خو هیڅ قومي مشر او قبیلې، د انګرېزانو د انتقامي حملو له بېرې، هغوی ته ځای ور نه کړ. بالاخره عبدالله د سید اکبر لمسي او د مبارک شاه زوی فیروز شاه ته پناه یوړه. مجاهدینو د هغه په سیمه کې یو څه وخت، په ډېرو بدو شرایطو کې، تېر کړ. عبدالله په ۱۹۰۱ کې وفات سو او د مجاهدینو د تنظیم او فعالیتونو چارې د هغه ورور عبدالکریم ته وسپارل سوې. که څه هم چې د مولوی عبدالله له وفات څخه وروسته تحریک دوام وکړ، او د شلمې پېړۍ تر دریمې لسیزې پورې، د بېلو بېلو مشرانو په رهبرۍ، ژوندی پاته سو، خو له زوره ولوېدی او زیاتره د محلي سیاست یوه برخه سوه. (Wahabi Movement pp ۳۱۸ -۳۱٦)

د سید احمد بریلوي د تحریک لومړنی هدف د هند له خاوري څخه د انګریزانو شړل او تر څنګ ئې د هغو غلطو رواجونو پر ضد مبارزه وه چې د اسلام دین ته ئې لاره پیدا کړې او د بېلو بېلو انحرافاتو او خرافاتو سبب سوي وه. که د سید احمد بریلوي تحریک د انګریزانو د زور او وسلو په مقابل کې ناکام سو نو د هغه پیروانو د هغه د اصلاحاتو تحریک ته دوام ورکړ. د پنجاب او په وروسته کې د پښتونخوا په سیمو کې ئې د اهل حدیث او اهل قرآن په نوم ډلې او تنظیمونه

جوړ کړل. دې دواړو ډلو، چې سرې ئې چندانې په توپیر نه پوهېږي، نبوي حدیثونه او قرآني ایتونه د وروستي قضاوت له پاره اساس ګڼل؛ او د نورو څلورو سني مذهبونو څخه ئې ځانونه مستقل بلل. دوی که څه هم چنداني ډېر نفوذ نه درلود او د یوه عادي مسلمان له پاره دا ګرانه خبره هم ده چې د حنفي مذهب، چې سید احمد بریلوي او د هغه پیروانو له لومړي سره اړه په درلوده، او د اهل حدیث یا اهل قرآن په توپیر پوه سي. د سید احمد بریلوي پیروانو، په پوره ایمانداري، د هغه د اجتماعي اصلاحاتو لاره تعقیب کړه. که څه هم چې اسلام هري کونډې ته د بیا مېړه کولو اجازه ورکړې وه خو د پښتونخوا او هند د مسلمانانو په منځنۍ طبقه کي چا د کونډې د بیا مېړه کولو خبره کولای نه سوای. د سید احمد بریلوي پیروانو د دغه ناوړه دود پر ضد ډېري سختی مبارزې وکړې او عملاً ئې کونډو ته د مېړه کولو فرصتونه برابر کړل. خلک ئې په دلایلو او زور مجبور کړل چې ښځو ته د مېړه په انتخاب کي حق ورکړي او دغه راز ئې په میراث کي د ښځو د شریکولو له پاره، چې تر دغه وخته پوري ئې اکثرو خلکو تصور نه سو کولای، ډېري زیاتي هلي ځلی وکړې، او ښځې ئې خپلو حقوقو ته متوجه کړې. د ښځو په ښوونه او روزنه کي ئې ډېره ښه ونډه واخیستله او د هند په خاوره کي یې د هغوی د بشپړي ازادۍ له پاره اساس کېښېښود.

(History and Culture of Indian p ۱۴۹)

په پښتونخوا کي د سید احمد بریلوي د تحریک د کارېدلو سره سم د حاجي فضل واحد په نوم یوه بل مذهبي مشر، چې د ترنګزیو په حاجي صاحب مشهور سو، د اجتماعي اصلاحاتو پروګرام پیل کړ. د ترنګزیو حاجي صاحب هم د سید احمد بریلوي په څېر د انګرېزي استعمار دښمن وو او وخت په وخت ئې د مهمندو قبایل، چې د هغه د نفوذ سیمه وه، وسله وال جهاد ته وهڅول، خو څرنګه چې د هیڅ لوري مرسته ورسره نه وه نو وسله وال مقاومت ئې پرله پسې له ماتي سره مخامخ سو. د ترنګزیو حاجي صاحب هغه کسان چې د لوښو او خویندو پر سر ئې ډېر درانه ولورونه غوښتل مجبور کړل چې خپلي لوڼي او خویندي په شرعي مهر خپلو مېړونو ته وسپاري. د ودونو، سنتیو، فاتحو او جنازو په مراسمو کي ئې د بېځایه او غیر شرعي خرڅونو پر ضد مبارزه وکړه او د پښتنو په لیري پرتو کلیو او بانډو کي ئې د پښتنو د باسواده کولو له پاره مدرسې جوړي کړې. د ترنګزیو حاجي صاحب د عمر تر پایه پوري د انګرېزي استعمار سره خپل مخالفت ته دوام ورکړ. د برتانوي هند حکومت پر هغه باندي څو ځله ډېري سختي حملې وکړې خو په خپل هدف کي، چې د حاجي صاحب له منځه وړل وو، بریالی نه سو. (Lords of the Khybar p ۱۹۵)

د سید احمد بریلوي د تحریک د پیل څخه بیا تر ختمېدلو او کرارېدلو پوري انګرېزان یوازي د هندوستاني مجاهدینو له ستونزي او مقاومت سره مخامخ نه وه بلکي د پښتونخوا په ټوله سیمه کي ئې له تقریباً هري

قبیلې سره جنګونه وکړل او د هرې قبیلې مقاومت ئې په خپل ټول زور کرار کړ. خو له بده مرغه چې نه د قبایلو تر منځ اتفاق او هماهنګي موجوده وه، نه د کابل د سردارانو له خوا، لږترلږه مرستي ورته راورسېدلې او نه د مقاومت د مذهبي مشرانو ترمنځ اتفاق او یووالی موجود وو؛ او لا ئې د یوه بل ریښې وهلې. کنه نو د انګرېزانو لیکوالان او مؤرخین د پښتنو جنګیالو پر زړه ورتیا او قربانیو باندي اعتراف کوي؛ او دا مني چې په جنګ کي ئې کمی نه دئ کړی. میجر هینري راورټي Major H.G Raverty لیکي چې افغانان څه اعلی عسکر دي؛ داسي ملت چنداني نسته چي یو په یو دي له دوی څخه په جسماني زور کي میدان وګټي. کتاب لیکونکو ته دا حقیقت نه معلومېږي بلکي هغه کسان چي د دوی په منځ کي ئې ژوند کړی وي په دې حقیقت پوهېږي چي دوی نه په زړه ورتیا او نه هوښیاري کي تر چا پاته دي. (Notes on Afghanistan p ١٦٣)

بل مؤرخ لیکي چي افغان هیڅ وخت په جنګ کي زاری نه کوي بلکي لکه پړانګ داسي جنګ کوي. او تر هغو پوري چي نور ئې نو په ګوتو کي د توپک د ماشې د کشولو توان پاته نه وي او نور ئې لاس د توري د پورته کولو زور نه لري او دښمن ټپي کولای او وژلای نه سي دی به خوځېږي. پر خاورو له پراته افغان څخه باید سړی هر وخت ډار ولري؛ کېدلای سي چي یو ناڅاپه را پورته سي او پر دښمن باندي خپل وروستی سخت ګوزار وکړي. دوی د کافر له وژلو څخه ډېر سخت خوند اخلي. په هغه زړه ورتیا چې دوی زموږ سره جنګېدلي دي، مړانه ئې د ستایلو وړ ده.

(India and the Frontier pp ٧٧٧- ٧٧٨)

یو بل انګریز صاحب منصب، کپټن ایچ ایل نیویل Captain H.L Nevill، چې د وزیرو سره په جګړو کي ئې برخه اخیستې ده لیکي چې دوی د هغوی له یوې ډلي سره مخامخ سول، چې له مورچلونو څخه ئې ډزي کولې؛ چي ګولۍ ئې ختمي سوې نو له غره څخه ئې ډبري اورولې او څو تنه ئې ټپیان کړل. کله چي پوه سول چي د دښمن قوه ورته نیژدې کېږي نو له ایستلو تورو سره ئې په حمله پیل وکړ او ټول قتل سول... د هغوی د کلیو ټوله شتمني مو یا تباه کړه او یا مو راسره واخیسته؛ په سبا مو د وزیرو د میداني د کلي، ګنداب او زکه د کلیو څخه ډېر زیات شمېر پسونه، غوایی او اوښان راوستل. (Campaigns on the North-West pp ۴۴- ۴۵)

د انګریزانو دغه ظالمانه جنګي عملیات نه په یوه سیمه او نه په یوه قام پوري محدود پاته سول، کلونه او په لس هاوو کلونه ئې دوام وکړ او بالاخره حتی د برتانیې د پارلمان غړو، سیاستمدارانو او مطبوعاتو دا عملیات وحشیانه وبلل او وې ویل چي دا عملیات پرته له دې چي د کلیو او شتمنیو تباهي او د بېګناه انسانانو قتلول وبلل سي بل مفهوم نه لري.

(History and Culture of Indian pp ۱۰۰۲- ۱۰۰۳)

البته د انګرېزانو د مرکزي حکومت او د برتانوي هند د حکومت په عمومي پالیسي کي، چي هدف ئې د پښتني قبایلو د سیمو لاندي کول او ایلول وه، هیڅ تغیر رانه غی. نور بیا...



لیکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# کلونینګ یا د مشابه انسان توالد

بسم الله الرحمن الرحیم - درنو لوستونکو، دغه لیکنه می په ۲۰۰۱ کی تهیه کړې او لیکلې ده خو متأسفانه تر اوسه نه ده خپره سوې. نو دا دئ اوس ئې د نشر موقع برابره سوه چې ستاسي لوستني ته ئې وړاندي کوم خو احترامانه هیله مي دا ده چې دغه پېچلې موضوع لطفاً په ډېر غور او تعمق سره ولولئ (ن. صمد).

کلونینګ د مشابه یا عین انسان تولید ته ویل کېږي او په ساده عبارت یا عادي اصطلاح سره د انسان یا حیوان فوټوکاپي هم بلل کېږي. د دې عمل په ذریعه د یو حیوان یا انسان څخه بل کټ مټ حیوان یا انسان تولیدېږي. کلونینګ د انساني یا حیواني بدن هغه علم دئ چې په لږ وخت کې ئې داسي فوق العاده او حیرانوونکي شهکارونه کړي دي چې تاریخ ئې ساری نه لري. د کلونینګ په عملیه کې د یو انسان یا حیوان مواد اخیستل کېږي او په بل انسان یا حیوان کي کرل کېږي او پسله څه مودې دوهم ۱۰۰٪ هماغسي انسان یا حیوان ورڅخه تولیدېږي چې دا پخوا یو خوب او خیال وو.

پوهانو او علماوو په دې هکله لومړی په طبي او عمومي بیالوجي، جنیني علومو، حُجروي ساینس، ارثي یا جنټیک انجنیري او بالاخره د څارویو په کلونینګ کي عجیب او

۵۰
زمری- وږی
۱۳۹۳ل
علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله
کندهار

غریب پرمختگونه کړي دي چي روا او ناروا دواړه اړخونه لري.

الله تعالی اصلاً د هر شي پیدا کوونکی دئ او هر څیز ته ئې ټاکلی حد ایښی دئ. نو په دې ټولو ساحو کي پرمختګ د الله ستر توب راته ثابتوي او دا هر څه د هغه ذات (ج) عظیمه پوهه، د خلقت ښېګڼه او د دې ناپایه کایناتو صرف یوه ذره ئې راښیي. الله تعالی فرمایي چي: «هر شی مو په اندازه سره خلق کړی دئ» (القمر: ۴۹) . بل ځای فرمایي: «او الله هر شی د هغه په اندازه سره پیدا کړی دئ» (الفرقان: ۲). او بیا داسي فرمایي: «او تاسی ته خورا لږ علم درکړه سوی دئ» (الاسرأ: ۸۵). او بیا داسي پسي زیاتوي: «آیا ستا رب کافی نه دئ؟ بېشکه چي هغه پر هر څیز باندي شاهد دئ» (فصلت: ۵۳). او بالاخره داړ راکوي چي: «الله هیچا ته تکلیف نه ورکوي مګر د هغه د وس په اندازه» (البقره: ۲۸۶).

که د پورتنیو آیتونو څخه د هر یوه تفسیر په غور ولولو، نو ثابته به سي چي لوی خدای هر شی په ټاکلې اندازه سره خلق کړی او هغه ته ئې ځانګړتیاوي عطا کړي دي لکه جنس، نوع، قد، رنګ، خوی، عمر، اجل، عمل، رزق، ژوند، مرګ، وخت، ځای او نور ټول ئې په ټاکلي مقدار سره لیکلي دي او انسانان د هغو په چوکاټ کي دننه لګیا دي ژوند کوي او زیار باسي.

اوس به راسو کلونینګ ته او وبه ګورو چي هغه څنګه د همدې ټاکلي چوکاټ په دننه کي د لاس وهنو کوښښ کوي. د کلونینګ لغوي معنا د ژوندي جسم (لکه نبات، حیوان یا انسان) څخه د بل عیناً جسم تولید یا کاپي کول دي. موږ په بازار کي د کوم سند او کاغذ فوټو کاپي کوو، خو کلونینګ بیا په ساده الفاظو سره په لا براتوار کي د حیوان یا نبات او یا هم انسان ژوندۍ فوټوکاپي ته ویل کېږي.

د انسان کلونینګ داسي وي چي د یو نارینه څخه یوه ژوندۍ حُجره اخیستل کېږي، د هغې څخه هسته کښل کېږي او دا هسته د ښځینه تخمې سره داسي یو ځای کېږي چي هسته ئې ورڅخه ایسته سوې وي او صرف سایټوپلازم ئې پاته وي (یعني د نارینه د حجرې هسته د ښځینه حجرې د سایټوپلازم سره ګډېږي). دا عملیه کټ مټ د بارداری (فرتیلزیشن) یا مصنوعي القاح غوندي وي خو دلته د نرینه د حجرې هسته د ځانګړو او دقیقو طریقو او وسایلو په ذریعه د ښځینه تخمې سره د خاصو کیمیاوي موادو په استعمالولو یا د یوې ځانګړي برقي جټکې د ورکولو له لاري ګډېږي. کله چي دا دوې حجرې (یعني د نارینه د حجرې هسته او د ښځي د حجرې سایټو پلازم) سره ګډ سي، نو وروسته ئې د ښځي په رحم (یوټیرس) کي القأ (ځای پر ځای) کوي تر څو تکثر یعني ډېرښت وکړي، غټه سي، پر نورو حجرو پسي وویشل سي، او بالاخره یو مکمل جنین (فیټس) تشکیل کړي چي هغه بیا نهه میاشتي وروسته د یو طبیعي ماشوم غوندي زوکیږي چي د اصلي سړي متشابه یا مثنی (ډُپلیکېټ) به وي.

دا اشباح یا حامله سازي (امپریګنیشن) د انساني کلونینګ په بهیر کي د نرینه د غیر

جنسي هستې او ښځينه غير جنسي حجروي سايټوپلازم تر منځ صورت نيسي. بايد وويل سي چي هر انسان په مليونونو آن بليونونو حجرې لري چي هره حجره ئې ۴۶ کروموسومونه لري. کروموسوم اصلاً د ارثي موادو غبرگي لولې دي چي د اړونده انسان ټول ارثي خواص مابعده نسل ته انتقالوي. جنسي حجرې اصلاً د نارينه د خُصيو (ټيستيکلز) او د ښځي د تخمدان (ا و و ر ي) څخه منځته راځي. د ښځي او نارينه هره جنسي حجره ۲۳ کروموسومونه لري چي دا د بدن د نورو برخو د حجراتو څخه نيمايي تعداد کروموسومونه دي (يعني د ۴۶ نيمايي).

په هر صورت، اصلي خبره دا ده چي په طبيعي القاح (بارداري کولو) کي د نارينه سپرماتوزوا چي ۲۳ کروموسومونه کېږي، د ښځي د تخمې (ا و و م) سره چي هغه هم ۲۳ کروموسومونه دي، يو ځای کيږي چي په دې حساب هره نوې توليد کېدونکې حجره بيرته بايد ۴۶ کروموسومونه ولري يعني نيمايي د نرينه او نيمايي نور هم د ښځينه څخه وي چي په دې ډول به ماشوم د مور او پلار دواړو مشترک او گډ کروموسومونه يعني خصوصيتونه (کرېکټريستيکس) ولري.

مگر د کلونينگ په بهير کي قصه بل ډول وي. دلته هغه هسته چي د اړونده شخص څخه اخيستل سوې وي، اصلاً ۴۶ کروموسومونه لري چي په دې حساب هغه صرف او صرف د هماغه انسان ارثي خواص په بر کي لري او همدا وجه ده چي نوی زوکېدونکی ماشوم بايد کټ مټ د هماغه انسان مثنی يا کاپي وي يعني هغسي لکه د يو شي فوټو کاپي چي اخيستل کيږي. دا ځکه چي د هماغه انسان ۱۰۰٪ خواص (لکه رنگ، ځيره، کړه وړه، خوی، او لنډه دا چي هر څه) دغه ماشوم ته ورانتقالېږي او د بل چا (يعني ښځي) اشتراک ورسره نسته. مطلب دا چي ۲۳ او ۲۳ کروموسومونه نه دي سره گډ سوي بلکي ۴۶ کروموسومونه په يوځايي توگه ور انتقالېږي، نو ځکه به نوزاد د هغه چا په رقم وي چي هسته ئې استعمال سوې ده (که هغه د پلار وي يا د مور).

وگورئ، طبيعي القاح د نرينه او ښځينه جنسي حجرو د اشتراک څخه منځته راځي چي ۲۳ کروموسومونه د نر او ۲۳ هم د ښځي وي. خو په کلونينگ کي ځکه بايد غير جنسي حجرې وکارول سي چي هغه ۴۶ کروموسومونه لري او څنگه چي ښځينه جنسي حجره نسته نو همدا ۴۶ کروموسومونه ټول بايد مابعده نسل ته انتقال سي او ځکه به نو ماشوم کټ مټ د پلار يعني هغه چا متشابه يا کاپي يا منثی وي چي حجروي هسته ئې کلون سوې وي. بايد وويل سي چي په کلونينگ کي د نارينه د شتون يا غيابت په دواړو حالاتو کي دا کار کېدای سي. ځکه، دلته د اړونده نفر د بدني حجرې اخيستل لازمي وي. دا سړی که په خپله حاضر او که غير حاضر وي هيڅ فرق نه کوي بلکي حجروي هسته ئې ځني اخيستل کېږي. په کلونينگ کي کېدای سي چي نارينه او يا هم ښځه مثنی کړای سي، يعني دا اختياري ده چي بل عيناً سړی يا بله عيناً ښځه توليد

سي، یا په ساده ژبه مشابه نارینه او یا هم مشابه ښځه تولید سي.

د نارینه کلونینګ مخکي وځېړل سو. اوس به د ښځینه کلونینګ خبره وکړو. د ښځینه کلونینګ بهیر هم هماغسي دئ، خو دلته د اړونده ښځي د بدني حجرې ځخه هسته را اخیستل کېږي او د بلي ښځي د بې هستې حجرې سره یو ځای کېږي او بیا د کومي بلي ښځي په رحم کي کرل کېږي تر ځو چي وروسته تکثر او انقسام وکړي او په جنین سره وده وکړي او بالاخره نهه میاشتي وروسته به د ماشوم په حیث وزوکېږي. دا ماشوم به عیناً د هغي ښځي ځېره، بدن او ارثي خواص ولري چي هسته ئې را اخیستل سوې او د بلي ښځي په بې هسته حجره کي تعبیه سوې وه چي په دې ټول بهیر کي له سره نارینه هیڅ برخه نه ده اخیستې (یعني بې پلاره کوچنی تولد کېږي).

وګورئ ځنګه چي په طبیعي القاح کي د مور او پلار دواړو ګډون شرط دئ، نو ځکه ماشوم د دواړو خواص ښکاره کوي او هیڅکله به هم یوازي د مور یا یوازي د پلار غوندي خصوصیت او ځېره و نه لري. یعني د والدینو قد، رنګ، خوی، توانایي، حرکات، چهره، کړه وړه د بدن د کوم غړي شباهت او نور به لږ یا ډېر پکښي موجود وي.

خو په کلونینګ کي به نوزاد یعني نوی زوکېدلی ماشوم د خپل والد یا والدې (د هر چا هسته چي استعمال سوې وي) بشپړ او کټ مټ مثنی وي او ټول هغه خصایص به ولري چي پورته ذکر سول. د دې معنا دا ده چي نوزاد به د هماغه نفر ټولي ذاتي (کانجنیټل) ځانګړتیاوي په ارث یوسي، یعني کټ مټ ځېره او بدن به ئې وي. خو کسب کړي خصایص ئې د وراثت تابع نه دي. وګورئ، که دا حجره د یو خورا معزز پوهاند، یا کوم زړه ور مجاهد او یا هم کوم مشهور فزیک پوه ځخه اخیستل سوې وي، نو کلون (یعني غیر طبیعي نوزاد) به بالکل د پلار غوندي ځېره او بدن ولري خو ځانګړتیاوي به ئې په ارث یو نه سي. ځکه، هماغه مشهور شخص دا کمالات کسب کړي وه نه دا چي په ارث ئې ورسره لرل.

د کلونینګ د بهیر کشف اصلاً یو د هغو قوانینو معلومول دي چي الله تعالی د انسان او حیوان په حجرو کي ایښي او تعبیه کړي دي. د کلونینګ بهیر دا وښودله چي د انسان یا حیوان هره جسماني حجره هله کولای سي چي ماشومان پیدا کړي چي د اړونده حجرې هسته ځني واخیستل سي او هغه د ښځینه حجرې سره (چي هسته ئې ایسته کړای سوې وي) امتزاج سي، کټ مټ لکه نرینه سپرم چي ښځینه تخمه القاح کوي. همدې عمل ته انساني کلونینګ ویل کېږي.

یو بل ډول کلونینګ هم سته چي جنیني مشابه کول (فیټل کلونینګ) ئې بولي. په دې بهیر کي یو ځوک کولای سي چي د جنیني مرحلې (فیټل پیریډ) پر مهال د خپلو کوچنیانو کلون (تشابه یا مثنی) جوړه کړي. د مور په رحم کي د جنین د جوړښت په پیل کي ډاکټر یا متخصص دغه زایګوت (یعني لومړنۍ حجره) پر دوو یا زیاتو حجرو وېشي. فلهذا، دا پروسه به د یوې ځخه زیاتي حجرې

تولید کړي چي د اصلی زایګوټ مثنی به وي. په دې حالت کي به د همدې جنین څخه غبرګولي وزېږي.

## اسلام د کلونینګ په هکله څه غبرګون ښیي؟

په نباتاتو او حیواناتو کي کلونینګ کول ځکه روا دئ چي هدف ئې د کیفیت سمون او د تولید ډېرښت وي، او همدا رنګه د انسانانو له پاره د ناوړو ناروغیو علاج ورڅخه مطلب وي. خصوصاً ځیني حاد مرضونه چي په دې کي د کیمیاوي دواوو د استعمال پر ځای چي انسانانو ته کله کله جانبي اعراض (سایډ ایفیکټس) پېښوي، نو د کلونینګ څخه استفاده جایز ده. د کیفیت سمون او د تولید ډېرښت په اسلام کي روا دئ او اجازه ئې سته.

د انساني ناروغیو د علاج له پاره د نباتي یا حیواني کلونینګ اجازه اسلام ورکوي آن هر دغسي اقدام هڅوي. امام احمد د أنس (رض) څخه روایت کوي چي ویل ئې: نبي کریم (ص) داسي وفرمایل: «الله ناروغي او تداوي خلق کړي دي. پس تداوي ولټوئ». ابو داؤد او ابن ماجه د اسامه بن شریک څخه روایت کوي چي هغه ویل: زه د رسول الله (ص) سره وم چي څو بدوَیان راغلل او پوښتنه ئې ځني وکړه چي: «اې د خدای رسوله (ص)! آیا موږ د خپلو ناروغیو له پاره د علاج په لټه کي سو؟» ده ورته وفرمایل چي: «هوکې، اې د الله بندګانو! د ناروغۍ علاج ولټوئ. الله تعالی داسي ناروغي نه ده پیدا کړې چي علاج ئې هم نه وي ورته پیدا کړئ». فلهذا، د نباتي او حیواني کیفیت د سمون او د هغو د تولید د زیاتوالي په غرض او هم د انساني ناروغیو د شفا له پاره د کلونینګ اجازه سته. حتی دا اجازه هم ورکول سوې ده چي د غواوو، پسونو، آسونو او نورو څارویو د کیفیت د اصلاح په خاطر کلونینګ وسي.

رابه سو د انساني کلونینګ اجازې ته. که چیري د جنین کلونینګ وي، او په هغه کي د مېړه د سپرمونو محصول د خپلي مېرمني د تخمې سره یو ځای سوی وي او هغه زایګوټ پر متعددو ججرو ووېشل سي تر څو نور هم پسي ډېر سي او وده وکړي او په دې ډول هره حجره ئې په خپله د یو جنین غوندي سي، یعني هر یو د اصلي زایګوټ مثنی وي او هغه پسي راواخیستل سي د کومي بلي ښځي یا د همدغه سړي د بلی مېرمني په رحم کي کښېښوول سي، نو د کلونینګ دا دواړه ډولونه (چي انتقال سوي دي) په اسلام کي حرام دي، ځکه چي دلته خون شریکي یا د نسَب تړاو (کینشیپ) سره ګډ کړای سو چي نتیجه ئې د خونشریکۍ له منځه وړل سوه چي اسلام هغه په کلکه منع کړي دي. مګر که یو یا څو همدا زایګوټونه (زایګوټس) د ماندینې په رحم کي کښېښوول سي (یعني چي د اصلي حجرې لومړنۍ منبع وي) نو په هغه صورت کي دا کلونینګ حلال دئ. ځکه، دلته زایګوټونه ډېر وي چي د عیناً مثنی غبرګولیانو د تولید په خاطر د خپلي مېرمني په رحم کي د یوې طبي پروسې له لاري اجرا کېږي (یعني د مېړه او ماندینې زایګوټ یا زایګوټونه د بلي ښځي رحم ته نه دي انتقال سوي).

دا وو د جنیني کلونینګ په اړه د اسلام

دریځ. اوس به راسو د انسان بشپړ کلونینګ ته. موږ وویل چې که د یو نارینه د بدني حجرې (یعني غیر جنسي حجرې) څخه هسته راواخیستل سي او د کومي ښځي د بدني حجرې څخه بیا هسته وغورځول سي او پر ځای ئې دغه نرینه حجره پکښې تعبیه سي او وروسته دا مخلوط سوې حجره د یوې ښځي په رحم کي وکرل سي (القأ کړای سي)، او هلته حجروي انقسام پیل سي او جنین تشکیل او وده پسي وکړي (تر څو نهه میاشتي وروسته ماشوم تولد سي)، نو دا ماشوم به د هماغه سړي مثنی وي چې حجروي هسته ئې د هغي بلي ښځی په حجروي سایتوپلازم کي اینبوول سوې وه. کلونینګ همدا رنګه د دوو ښځو د بدني حجرو د ګډون څخه (د نارینه له اشتراکه پرته) هم منځته راتلای سي. دلته هم د اړونده ښځي د بدني حجرې هسته را اخیستل کېږي او هغه د بلي ښځي د بې هستې حجرې سره ګډېږي. وروسته دا امتزاجي حجره د یوې ښځي په رحم کي اینبوول کېږي تر څو زایګوټ جوړ کړي او پسي غټه سي او نهه میاشتي وروسته ماشوم وزوکېږي. دا نوزاد به عیناً د هغي ښځي مثنی وي چې هسته ئې را اخیستل سوې او استعمال سوې وه. دا هغه طریقه ده چې د «ډولي» په نوم یوه مېږه په انګلستان کي ورڅخه تولید کړای سوه. په هغه کلونینګ کي د یوې میږې د غولانځي څخه یوه حجره را واخیستل سوه، هسته ئې ورڅخه وکښله او دا هسته ئې د یوې بلي مېږې د تخمې سره چې هسته ئې ورڅخه ایسته کړې وه ګډه کړه او دا مشترکه حجره ئې راواخیسته د بلي مېږې په رحم کي ئې تعبیه کړه څو چې هغې تکثر پیل کړ او سَوکه سَوکه ئې وده کول او بالاخره جنین سو او ماده سیرلی وزوکیده چې نوم ئې ډولي پر کښیښود. ډولي د هماغه مېږې (ماده پسه) بشپړ تشابه یا کاپي یا مثنی وه چې هسته ئې را اخیستل سوې او استعمال سوې وه. بې پلاره ډولي د ۱۹۹۶ د جولای پر پنځمه تولد او د ۲۰۰۳ د فبروری پر ۱۴مه مړه سوه. هغې شپږ کاله ژوند وکړ خو د مفصلونو له درده او تر هغه لا مهمه دا چې د سږو په شدید رنځ او سرطان تر مبتلا کېدو وروسته مړه سوه. دا په تاریخ کي لومړنی حیواني کلون دئ چې انسانانو وکړ. ډولي شپږ نر او ماده سیرلیان وزوکول (لومړنی ئې په ۱۹۹۸ کي وو، بیا ئې په ۱۹۹۹ کي غبرګولیان وزېږول، او په ۲۰۰۰ کي ئې هم په یو ځایي توګه درې بچیان وزېږول) څو چې په ۲۰۰۱ کي د بندونو په درد مبتلا سوه او پر لاري نه سوای تللای.

په هر صورت، دغسې کلونینګ که د انسانانو (مذکر یا مؤنث) څخه وسي نو د نړۍ له پاره به مصیبت او فلاکت رامنځته کړي. ځکه، په دغسي کلونینګ کي د نورو مرموزو اهدافو څخه علاوه ځیني ظاهري هدفونه لکه د کیفیت اصلاح کول، د ځیرک نسل ډېرول، د غښتلو، زړه ورو او صحي او یا هم ډېرو ښکلو انسانانو انتخابول او لرل وي، او یا هم هدف د نفوسو ګړندی زیاتول و... هو، دا ټول شیطاني کارونه دي چې د اسلام د سپېڅلي دین له مخي کورټ حرام دي او د لاندنیو دلایلو پر اساس اجازه نه لري:

لومړی ـ په دې طریقه سره د کوچنیانو توالد د هغې طبیعي طریقې سره ضدیت لري چې الله انسانانو ته د نسل د ډېرښت له پاره ټاکلې ده. لوی خدای داسې فرمایي: «آیا دغه (انسان اول) د یو څاڅکې مني څخه نه وو چې هغه توی سو (د ښځې په رحم کې)؟ بیا هغه یوه ټوټه د وینو وو، نو الله (ئې اندامونه) پیدا کړل پس برابر کړ (صورت ئې او روح یې پکښې وپوکله) نو د هغه (مني) څخه ئې جوړه نرینه او ښځینه پیدا کړل»، (القیامه: ۳۷، ۳۸، ۳۹) او د انسان الهي او طبیعي جوړښت داسې راپېژني: «بیا مو نطفه په یوه محکمه قرارګاه (رحم) کې ځای پر ځای کړه. بیا مو دا نطفه د وینو یوه ټوټه وګرځوله، دا خوني ټوټه مو د غوښو غوندي کړه، د دې غوښې غوندي ټوټې څخه مو هډوکي جوړ کړل، هغه هډوکي مو په غوښو سره وپوښل، بیا مو نو پیدا کړ» (المؤمنون: ۱۳، ۱۴). نو آیا دغسې کلونینګ د دې آیتونو څخه صریح سرغړونه نه ده؟

دوهم ـ هغه کلون سوي کوچنیان چې د ښځې څخه تولد کېږي خو څنګه چې په هماغه پروسه کې نارینه ګډون نه دئ کړی، نو ځکه دغه ماشوم پلار نه لري. د دې برعکس، که د یوې ښځې حجروي هسته را اخیستل سوې وي او هغه د بلې ښځې په رحم کې تعبیه سوې وي، نو ماشوم به بې موره وي. ځکه، د دې ښځې رحم صرف یو انتقالي رول لوبولی دئ. دا پروسه به بې پلاره یا بې موره انسانان منځته راوړي چې د الله د دې فرمان سره ښکاره ضدیت لري چې فرمایي: «اې انسانانو، موږ تاسې د نر او مادې څخه خلق کړي یاست» (الحجرات: ۱۳) او بیا داسې فرمایي: «هغوی د خپلو پلرونو په نوم سره مخاطب کوئ چې د الله په نظر ډېر ښه دي» (الاحزاب: ۵) آیا پورتني کلونینګ د دې آیتونو څخه واضح تېرئ نه دی؟

درېیم ـ د نَسَب لړۍ به له منځه ځي. اسلام د خپلوۍ او نسب ډېر خیال ساتي او هغه ته اهمیت ورکوي. ابن عباس (رض) وایي چې رسول الله (ص) وفرمایل: «هر څوک چې د خپل پلار څخه ماسیوا د تولد رشته په هر هغه چا پورې تړي چې مربوط ئې نه وي نو د الله، ملایکو او ټولو خلګو د لعنت وړ به وي». (ابن ماجه) ابو عثمان النهري نقل کوي چې ده د سعد (رض) او ابوبکر (رض) هر یوه څخه اورېدلي دي چې هغوی د نبی مبارک (ص) څخه اورېدلي او ورباندي پوه سوي وه چې «هر څوک چې له خپل پلاره ماسیوا بل څوک پلار وګڼي او په دې پوه وي چې هغه ئې پلار نه دئ، نو دغه شخص به جنت ته داخل نه سي» (ابن ماجه). ابو هریره (رض) هم نقل کوي چې ده له رسول الله (ص) څخه اورېدلي چې ویل ئې: «هره ښځه چې نور چا ته خپل نسب داسې ور معرفي کړي چې د هغې خپل نه وي، نو الله د هغې سره سروکار نه لري او جنت ته به داخله نه سي، او هر شخص چې د خپل زوی څخه دغسې ممانعت وکړي په داسې حال کې چې ورته ګوري به، خو الله به ځان ورښکاره نه کړي او الله به هغه د نومورې د لومړني او وروستني نسل په مخ کې سپک او رسوا کړي» (الدارمی).

نو دا چې کلونینګ د داسې انسانانو د

تولید په خاطر وي چي هدف ئې د اړونده نوي نسل ښکلا، پوهه، طاقت او روغتیا وي، نو معنا به ئې دا وي چي په دې ډول انسانان د نرینه او ښځینه څخه د اکتسابي خصایصو د انتخابولو په خاطر اخیستل کېږي، مهمه نه ده چي واده ئې سره کړی وي یا نه. د دې کار په نتیجه کي اړونده حجره د مطلوب خاصیت د رابېلولو په غرض د کوم نارینه څخه اخیستل کېږي او تخمه هم د کومي انتخابي ښځي څخه رابېلېږي او په یوه انتخابي ښځه کي تعبیه کېږي. په دې ډول به نو نسَب ختم سي چي حرام دئ.

څلورم ـ د کلونینګ په نتیجه کي د کوچنیانو منځته راوړل د شرعیه اصولو مخنیوی کوي. هغه لکه د واده اصول، د نسب لرلو اصول، د نفقې اصول، د پلارولی اصول، د زوی ولی اصول، د میراث اصول د پالني او سرپرستی اصول، د محرم اصول، اسباط او داسي نور. نسل به سره ګډ او ختم سي، د انسان فطري ځانګرتیاوي او سپېڅلتیاوي به ککړي سي، ټولنه به د کفران او عصیان په غېږ ورسي ... دا ټول اعمال د هغو طبیعي لاروچارو پر ضد دي چي الله (ج) د توالد او تناسل له مخي انسانان خلق کړي دي او څو بېلګي ئې پورته ذکر سوې. دا یوه شیطاني پروسه ده او د ټولني یوه یوه خښته به ماته کړي، له همدې امله انساني کلونینګ حرام دئ او اسلام هیڅ اجازه نه ورکوي. الله تعالی فرمایي چي شیطان وایي چي: «زه به هرومرو دوی ته امر وکړم چي د الله خلقت بدل کړي» (النسأ: ۱۱۹).

پنځم ـ د څېرې بېلابېل والي او د رنګ تنوع په دې ډول کلونینګ کي له منځه ځي چي الله داسي فرمایي: «د خدای د نخښو په لړ کي د آسمانو او ځمکي خلقت او ستاسو د څېرو او رنګونو ډول ډول والی دئ» (الروم: ۲۲). پس آیا کلونینګ د دې الهي قانون څخه صریح تېری نه دئ او دغه تنوع له منځه نه وړي؟

شپږم ـ په دې کلونینګ کي د جوړې (جفت) یا نر او مادې قانون له منځه ځي چي یو د طبیعت له مظاهرو څخه دئ. الله تعالی فرمایي: «موږ تاسي د جوړې په ډول خلق کړي یاست» (النسأ: ۸) او: «موږ هر څه د جوړې په ډول پیدا کړي دي تر څو تاسو ته یوه یادونه وي» (الذریت: ۴۹). پس آیا دغه الهي قانون مات نه سو؟

دا لا څه، نور زیانونه او تاوانونه هم لري، مثلاً:

الف: د آوازونو بېلابېل والی چي د طبیعت یو بل قانون دئ، په کلونینګ کي له منځه ځي.

ب: کېدای سي له دې لاري د جنګ او یرغل، شر او ظلم، وژني او بې رحمی په اصطلاح قهرمانان هم مثنی او تولید کړه سي او په دې ډول د بشریت پر ضد یو بل خبیث طاقت رامنځته کړي لکه اټومي وسلې چي دي.

ج: په مشابه (مثنی) سوو انسانانو کي به ناروغی په تېره بیا ساري ناروغی د هغوی د جسمي او رواني مشابهتونو له امله خورا ډېري او ژر خپرې سي چي دا یوه تباهي ده.

د: کورنی چي د ژوند بنسټ دئ او د مور او پلار څخه جوړه سوې ده، په کلونینګ کي

بې معنی کېږي او له منځه ځي.

و: تر ټولو مهمه دا چې پورتني موارد د داسي مغلق تياوو، پېچلتياوو، او ګيچ تياوو مجموعه ده چې په مثنی سوي انسان کي ډېر منځته راځي. بايد جداً متوجه اوسو چې کلون سوی انسان به عقلاً او منطقاً هماغه حجره ورکوونکی انسان نه وي (سره له دې چې د هغه انسان ټول جسمي او رواني صفات به ولري)؛ دا ځکه چې دی خو په زماني حساب تر هغه وروسته منځته راځي يعني نوی محيط، د روزنې طريقه، کلتور او هر څه خو ټوله نوي دي او پر ده باندي اثر ښندي. پس نو دغه دوه انسانان څه اړيکې او قرابت سره لري؟ آيا دی ئې زوی دئ؟ آيا ورور ئې دئ؟ او که سره بېګانه دي؟ علماً او منطقاً هيڅ خپلوي نه سره لري چې دا ډېره اوږده موضوع ده او څېړل ئې دلته ګنجايش نه لري.

په هر صورت، دوو خورا مهمو پايلو ته بايد ځير اوسو: لومړی دا چې کلونينګ (يا مثنی سازي) د يو نوي موجود منځته راوړل نه دي بلکي د يو ژوندي موجود له موادو څخه د هغه مثنی (يا تشبيه سازي) ده؛ دوهم دا چې کلونينګ دغه ديني عقيدې ته نور سپيناوی او قوت هم ورکوي چې هماغه پسله مرګه بيرته راژوندي کول دي. دا چې بې وسه انسان د بل ژوندي انسان يا حيوان يا نبات څخه بل ژوندی موجود جوړولای سي، نو قادر او مقتدر الله به د قيامت په ورځ بيرته ټول انسانان راژوندي نه کړای سي؟!

هو، د الله (ج) له خوا پيدايښت اصلاً طبيعي دئ چې لوی خدای په دې ډول انسانان تولد کوي او د نرينه سپرم او ښځينه تخمې تر القاح وروسته انساني توالد او تناسل مخته بيايي. خدايي قانون دا دئ چې دغسي توالد او تناسل بايد د نارينه او ښځي د شرعي يو ځای والی څخه رامنځته سي، نه په لابراتوار کي د هغوی د حجرو د امتزاج څخه.

د کلونينګ له لاري د انسانانو توالد او تناسل طبيعي او فطري طريقه نه ده يعني دا چې په دې طريقه کي د نر او ښځي د يو ځای کېدو څخه (چې هماغه جايز واده دئ) پرته کوچنيان تولد کېږي چې حرام دي او ځکه نو دا ماشومان حراميان بلل کېږي او کړونی ئې ظاهراً انسان وي خو عمل ئې د شيطان وي. والسلام (ن. صمد).


اړونده مأخذونه:

۱. د انساني کلونينګ اخلاقي اړخ؛ ليون کاس او جېمز ويلسن، واشنګټن، ۱۹۹۸.
۲. د انسان مثنی کول او اسلامي رايه؛ عبدالعزيز سچدينا، فونټېن مجله، ۲۶مه ګڼه، ۱۹۹۹.
۳. د کلونينګ، د انساني غړو د پيوند، نقصان [اولاد ضايع کولو]، لابراتواري ماشومانو، د ژوند د بيمې، د ژوند او مرګ په باره کي اسلامي فتوا؛ عبدالقديم زلوم، لندن، ۱۹۹۹.
۴. حکم شرعی تشبيه سازی حيوان و انسان؛ عبدالظاهر سلطانی، تهران، ۱۳۸۵ شمسی.
۵. خلقت انسان؛ يدالله سحابی، تهران، ۱۳۵۱ ش.

# هنر او ادب

**چلوونکی: پردېس کندهاري**

**استاد عبدالباري جهاني**

## غزل

ساقي پر خپل قول پښېمان سو وایه چیري به ځو
له میو تش خُم د مغان سو وایه چیري به ځو

مور د سپرلي د سباوون په هیله شپې سپیني کړې
په شپه کي زېری د توپان سو وایه چیري به ځو
"پورته شاهین کښته ښکاري په لاس کي غشی لینده"
اوس خو نصیب راته حیران سو وایه چیري به ځو
نور به غزلي د وصال افسانې نه څخوي
زموږ په قسمت رنګ د هجران سو وایه چیري به ځو
موږ د ظالم له لاسه پورته کړل په سوال لاسونه
نن چي غلیم راته اسمان سو وایه چیري به ځو
موږ آزادۍ ته په قفس کي وزرونه مات کړل
چي خپل وطن راته زندان سو وایه چیري به ځو
رویبار به څنګه پیغامونه تر منزله ور وړي
غماز په کور کي د جانان سو وایه چیري به ځو
موږ د لستوني د ښامار له زوره نه وو خبر
نن ئې هر غاښ د زهرو کان سو وایه چیري به ځو

جهاني تا چي هر قدم ورته لېمه فرشول
د سر سودا ته دي روان سو وایه چیري به ځو
د جولای شپاړسمه ۲۰۱۴ ویرجینیا

**هارون حکیمي**

## غزل

سوو زخمونو ته له اوره هیله نه لرمه
نه درته ګورم، مه راګوره هیله نه لرمه

د موسکو سترګو په انداز باندي چي نه خپلېږې
ژبه مي ګونګه ده، له زوره هیله نه لرمه

عکس مي واخله په واټونو کي ئې وسوځوه
د نامردانو څخه نوره هیله نه لرمه

زه چي د خپل زړه په ساحل کي ارام وغوړېږم
نوره له کوره او له ګوره هیله نه لرمه

چي دا خپل سر پر اوږو وانخلمه یوئې نه سم
دې مسئولیت ته مي له وروره هیله نه لرمه

که پر مین یمه؛ کابل مي دئ، هارون ئې یمه
چي مي قاتل دئ؛ له لاهوره هیله نه لرمه

۲۰۱۴-۰۷-۲۶ کابل

محبوب مشتاق

# غزل

د یار له لاسه داسي کېږي نو به څه پرې وسي
سترګي چي شپه او ورځ ژړېږي نو به څه پرې وسي

ملګرو نن په دې محفل کي دا یوه شمعه ده
دا هم کرار کرار سوځېږي نو به څه پرې وسي
ستا دغي نخښې ته مي ډېري مودې تېري کړلې
ستا د پښې پل دئ خراپېږي نو به څه پرې وسي
ما مي جونګړه کړه په څومره تکلیفونو جوړه
باران اورېږي را څڅېږي نو به څه پرې وسي

تا د نفرت په لفضو ورکړله څپېړه پر مخ
لکه د مني بلګ رژېږي نو به څه پرې وسي

غزل

د هـــري شـــپې پـــه تاریکـــه کـــي ســـتوري
د ورځـــي نـــه ښـــکاري پـــه شـــپه کـــي ســـتوري
د مینـــــــــــي لاره دي ســـــــــيده ور ولي
د یـــار د ښـــار کوڅـــه کوڅـــه کـــي ســـتوري
تـــا تـــه د هغـــه بـــې امکانـــه ځـــای څـــه
راوړمـــه تـــا تـــه پـــه تحفـــه کـــي ســـتوري
د شـــپې د خـــداي پـــه امـــر سر پورتـــه کـــړي
ورځ تېـــروي پـــه ســـجده کـــي ســـتوري
مـــشتاقه دلتـــه څـــه نـــا څـــه اوســـېږي
خـــو ســـته پربمانـــه پـــه کعبـــه کـــي ســـتوري

ذبیح الله جهیش

# غزل

ستا د یادونو پر مزار مي اورېدله اوښکه
زما د سترګو له پرهاره اورېدله اوښکه
تا چي زما فراق کي شور وکړ سلګیو لره
لکه هینداره چي و لمر ته ځلېدله اوښکه
ستا د مړو سترګو د ستم له ستمګر نظر نه
لکه ماشومه یخ نیولې رپېدله اوښکه
صبر ئې وکړ خو د غم کي سلګو وانه خیسته
وه پښتنه د حیا شال کي پټېدله اوښکه
جهیشه تا چي ورته وویل چي تا خوښوم
له خوشحالۍ نه ئې پر سپین مخ نڅېدله اوښکه

عبدالغفار حقمل

# غزل

ځان مي که جانان مي که رقیب له منځه وباسه
دا پوره ارمان مي که رقیب له منځه وباسه
زه خو د هجران تورو تیارو ډېر خوروولی یم
یو ځلي روښان مي که رقیب له منځه وباسه
نور هم په رقیب او غماز سرې لمبې ور پوري که
سرو شونډو پېزوان مي که رقیب له منځه وباسه
نور مي ته د سترې ژوندون سترې احوال مه پوښته
خوار زړګی ودان مي که رقیب له منځه وباسه
نن ئې څو خبرو کي حقمله راته وویل
ستا مي که زندان مي که رقیب له منځه وباسه

ثریا حمیدي افغان

## غزل

راسه د یار یاده راته وناځه
ښه مې کړه برباده راته وناځه
مینې دي د شعر په نوم خاني راکړه
غم دي کړمه ښاده راته وناځه
نه د موسیقی په خاطر نه وایم
دا غزل زما ده راته وناځه
هیڅ د چا خبرو پسې مه ګرځه
دا خو نو دنیا ده راته وناځه
وایي ثریا وزګاري مه کوه
دا هم مشغلا ده راته وناځه

## غزل

دا د غمه ډک دغه لمبې ژوند ته
نور ضرورت نه لرمه دې ژوند ته

هیڅ مې هم هېر نه کړ ستا راکړې درد
رانه غله خوښي یو څو لحظې ژوند ته

دا نړۍ هغه نړۍ پوهېږم نه
مرګ ته هم نژدې او و نژدې ژوند ته

ما چې سترګي روڼې کړې وه توره شپه
ما ښه راغلاست ووایه د شپې ژوند ته

زه باور لرم چې به خوښي راکړي
ما ثریا کړي دي ګیلې ژوند ته

خاطره فیضي

## غزل

څومره سترې او ترخه مې زندګي سوه
ورځ مې شپه سوله او شپه مې زندګي سوه

زما سپرلی موسم راغلی لا هم نه وو
د خزان له خوا لمبه مې زندګي سوه
ژونده! ټوکه یې دوکه یې ټول فریب یې
اوس په تا کې اموخته مې زندګي سوه

د فیضي زړه لا پخوا ترې نه قربان وو
بې جانانه بې مزه مې زندګي سو

پاڼه حقیقت

## غزل

څنګه کرار کړم بې کرار زړګی مې
ټپې ټپې پرهار زړګی مې

ته چې ترې ولاړې ښایسته فرشتې
بس هغه دم سولو بېمار زړګی مې

هم ترېنه خوب هم ترې خوراک پاته سو
دې شپه او ورځ سترګې په لار زړګی مې

څومره ناپوه څومره نادان وو دا زړه
خو تا اوس څومره کړ هوښیار زړګی مې

پاڼه ده څکه پر ګلاب مینه
دې د ګلاب په شانتې یار زړګی مې

حمید دقیق

## غزل

یاره سر نه یم ژوندی یم ستا په یاد کې
خو پر زړه باندي سوری یم ستا په یاد کې
بې له سینې مې د ژوند بل هدف نسته
زه د مینې لېونی یم ستا په یاد کې
زما او ښکو زما وجود دئ داسې کړی
د ژ نګ ډک لکه پترې یم ستا په یاد کې
د خندا خبرې نه راوړمه خولې ته
زه خاموشه یم ګونګی یم ستا په یاد کې
زه په سلو کې او یا فیصده ژاړم
زه اوس دغسې سړی یم ستا په یاد کې
نورو خلکو ته ژوندون ګلاب دئ
یو دقیق ورته اغزی یم ستا په یاد کې

عنایت الله عارف

## غزل

ته همېشه راته کوې په خوله د شر خبري
خو زه کوم تا ته په مینه د هنر خبري
ګوره جانانه لري تل داسې عادت پښتانه
وړې وړې بولي په مینه کې د سر خبري
رښتیا ملګرو تاسو هم ماغوندي یاست او که نه
که یو پر ما کوي د هر ښکلي اثر خبري
پر ښکلي مخ د یار نرۍ نرۍ خوله راولي
تاسې ور و ګورئ کوي ورسره لمر خبري
د عارف مخکې ئې منګی مات کړ توبه ئې وکړه
ویل ئې نسته د ګودر او ماخیګر خبري

محمدعیسی قایم

## غزل

ستا په تمه تمه ساه مې وختـه
ته ګرځې ببغمه ساه مې وختـه
نور مې د مزله ځځه پښې ولوېدې
چیرې یې صنمه ساه مې وختـه
سترې یمه سترې به تر ځو ګرځم
غېږ کې مې کړه دمه ساه مې وختـه
ته دې د وصال مهلم پټ وساته
زما دوا ملهمه ساه مې وختـه
سترګې چې قایم درځځه پټې کړې
ټوله سې راجمعه ساه مې وختـه

کمینیار غریب

## غزل

اې قسمته د ځوانۍ پر ښاخ چپه یې
که د یار د پردېسۍ پر ښاخ چپه یې
ساقي داوارې اختیار د میو راکه
لا تر څو به د نېستۍ پر ښاخ چپه یې
په لقمان دې علاج نه کېږي الهامه
شپه او ورځ چې د سلګۍ پر ښاخ چپه یې
سایل زړه کچکول دې ډک سو له غمونو
چې مدام د بېوسۍ پر ښاخ چپه یې
پتنګ خیاله کومې شمعې یې سوځلی
چې د ستورو او سپوږمۍ پر ښاخ چپه یې
یاغي فکره یو تصویر ئې راښکاره که
ته د کومې شاپېرۍ پر ښاخ چپه یې
دې لړۍ کې به ارواح د لاسه ورکې
یوه ورځ به د دوړۍ پر ښاخ چپه یې
کمینیاره خپل قلم به دې مرګې سې
چې د ورانې شاعرۍ پر ښاخ چپه یې

څېړنوال محمدشریف خدران

# د شیرخ سرخ لویې جرګې ملي، سیاسي او تاریخي اهمیت

جرګه د افغانستان په تاریخ کې یوه لرغونې، تاریخي، سیاسي او ټولنیزه مؤسسه ده چې د سیمه ییزو، ملي او نړۍ والو مسایلو او ستونزو په حل کې د اولس اراده او پرېکړې انعکاسوي. په ویدي عصر کې د سبها او سمیتي جرګې د آریایانو لومړنۍ جرګې وې، چې د کلیو او هیواد په کچه د ملي، سیاسي او ټولنیزو مسالو د حل له پاره رابلل کېدې، لازمي مشورې او پرېکړې ئې کولې.

دغه راز د افغانستان په معاصر تاریخ کې د کوکران او مانجې د ملي او تاریخي جرګو پرېکړې د صفویانو د استعمار د پوپناه کولو لامل شوې. هوتکي قیام ئې پیل، رهبري او بري ته ئې ورساوه. خو په ایران او افغانستان کې د هوتکیانو د واکمنۍ له پرځېدو وروسته د نادر افشار په واکمنېدو سره د افغانستان سیاسي واکمني او د ملي لویو جرګو لړۍ تر یوې لس کلنۍ مودې پورې وشلېده.

د نادر افشار له خوا په ۱۷۲۹م کال په اصفهان کې د شاه اشرف هوتک په مشرۍ د افغانانو حکومت، په ۱۷۳۱م کال په هرات کې د ابدالیانو حکومت، په ۱۷۳۷م کال په کندهار کې د شاه حسین هوتکي حکومت یو په بل پسې راوپرځول شول، ټول تاریخي افغانستان د نادر افشار تر واک لاندې راغی.

نادر افشار چې په ایران او افغانستان کې د افغانانو جنګي وړتیاوې په خپلو سترګو لیدلې وې او د دوی جنګي ځواک ئې په ښه توګه درک کړی وو، د افغانستان له نیولو وروسته ئې د افغانانو سره د نرمښت او مصالحې لاره خپله کړه او د افغانانو داخلي خودمختارۍ ته ئې تر ډېره بریده درنښت وکړ. د بېلګې په توګه عبدالغني خان الکوزی ئې د هرات د مشر په توګه، حاجي اسماعیل الکوزی ئې د شین ډنډ د مشر په توګه، نورمحمد علیزی (میر افغان) د څلوېښت زرو افغان لښکرو د مشر په توګه وټاکل شو. که څه هم نادر افشار په ۱۷۳۸م کې د احمدشاه ورور ذوالفقار خان ابدالي او شاه حسین هوتک لومړی مازندران ته تبعید کړل او بیا ئې دغه دواړه سیاسي مشران په زهرو ووژل، خو احمدخان ابدالي ئې له مازندران څخه راغوښت او د ابدالي لښکرو په مشرتوب ئې وټاکه (۱۷۴۱م)[1].

احمدخان ابدالي د نادر افشار په پوځي سوقیاتو کې خپله وړتیا وښودله او تر دومره کچې د نادر افشار د باور وړ وګرځېد چې په عام دربار کې به ئې د ده په اړه داسې ویل: "ما په ایران، توران او هندوستان کې د احمدخان ابدالي په څېر بل داسې سړی نه دئ لیدلی.

چي دومره لوړ استعداد ولري". حتی هغه د خپلي شاهي خېمې په دوهمه دروازه کي د احمدخان تر قوماندې لاندي درې يا څلور زره افغان جنګيالي سپاره ساتل[۲].

"په تاريخ جهانګشای نادری" کي راغلي، کله چي سهار وختي د نادر افشار د وژلو خبر خپور شو او د هغه په اردو کي ګډوډي راغله، افغانانو او اوزبکو د احمدخان ابدالي په مشرۍ د نادر افشار د ژغورلو په نيت جګړه پيل کړه، افشاريان او پوځ ئې پر شا وتمبول او د نادر افشار خېمې ته چي ورسېدل، د هغه مړی ئې وموند، سملاسي پوه شول چي د دوی هڅي بې ګټي دي او کومه پايله نه لري. له همدې امله کندهار ته وخوځېدل، څو د خپل هيواد بر خليک وټاکي[۳].

مينورسکي ورته نظر لري او ليکي چي د ۱۷۴۷م کال د جون په مياشت کي د نادر افشار تر وژلو وروسته ابدالي، اوزبک او افغان پوځونه د احمدخان ابدالي په مشرۍ د کندهار پر لور روان شول او دليل دا وو چي نور ئې په ايران کي د خدمت کولو له پاره کوم جواز نه درلود، ځکه چي امپراتور ئې ووژل شو[۴]. بې له شکه د نادر افشار وژنه د دې لامل شوه چي د هغه په پوځ کي تنظيم شوي افغان جنګيالي د احمد خان ابدالي او د نورمحمد خان عليزي په مشرۍ د مشهد له فتح آباد څخه بيرته هيواد ته راستانه شي او د افغانستان د خپلواکۍ د اعلان او د ملي مشر د انتخاب په اړه د پخوا په څېر لويي جرګې ته مراجعه وکړي.

د شيرسرخ لويه جرګه چيري او کله جوړه شوه؟

په مجمل التواريخ کي چي د احمدشاه بابا له مړيني (۱۱۸٦هـ) لس کاله وروسته د ۱۱۹۵ – ۱۱۹٦هجري کلونو په موده کي ليکل شوی دئ راغلي دي چي د نادر له وژلو وروسته افغان او اوزبک لښکري د کندهار پر لور وخوځېدې او درې منزله وړاندي د تم کېدو پر مهال افغان مشرانو په خپلو کي مشوره وکړه چي په دغه اوږده لاړ کي يو شخص بايد د مشر په توګه وټاکو، څو کندهار ته د هغه تر لارښووني لاندي خپل خلک له قزلباشو څخه په امن کي ورسوو. په نتيجه کي يو شمېر سردارانو او لښکريانو د احمدخان پر مشرتوب باندي موافقه وکړه او د هغه په سر کي ئې د تاج پر ځای د غنمو وږی وتومبه او کندهار ته رسوان شول[۵].

د احمدشاه بابا د دربار منشي او د (تاريخ احمدشاهي) ليکوال ليکي چي د نادر له وژلو وروسته ټولو سترو مشرانو، رئيسانو او لوړ مقام لرونکو مشرانو له خاصو او عامو وګړو سره له مشورې وروسته په يوه اتفاق احمدخان د پادشاهۍ پر تخت وټاکه او د تاج پر ځای ئې د ده په پګړۍ کي د غنمو وږی وتومبه[٦]. که څه هم د منشي محمودالحسين له څرګندونو ښکاري چي افغان مشرانو او چارواکو د يوې لويي غونډې په ترڅ کي احمدخان ابدالي د پاچا په توګه ټاکلی دئ، خو د دې غونډې ځای ئې نه دئ ښودلی.

په هر صورت د مجمل التواريخ څرګندوني چي ګويا افغان مشرانو د لاري په

اوړدو کې نهه ورځې غونډه جوړه کړه او احمدخان ئې د پاچا په توګه انتخاب کړ، له واقعیته لیرې ښکاري. لومړی په امنیتي لحاظ د یوې داسې غونډې جوړول ناممکن وو، ځکه له مشهد څخه تر افغانستان پورې ټول واک او سیمه د ایراني چارواکو په لاس کې وه او دوهم د یوې داسې تاریخي او ملي غونډې له پاره د مساعد ځای پیدا کول هم یو ناشونی کار وو.

دریم دا چې پرته له مجمل التواریخ څخه نور ټول تاریخي منابع په یوه خوله لیکي چې دغه لویه جرګه د کندهار په شیرسرخ کې جوړه شوې ده. د بېلګې په توګه سرپرسي سایکس په خپل اثر (تاریخ افغانستان) د لومړي ټوک په ۳۴۲ مخ کې، فیریر په خپل اثر (د افغانانو تاریخ) په ٦٧ مخ کې، الفنسټن په خپل اثر (د کابل سلطنت بیان) د دوهم ټوک په ۲۴۷ مخ کې، ګانکوفسکي په خپل اثر (د درانیانو امپراتوري) په ۲۷ مخ کې، سلطان محمد خان درانی په خپل اثر (تاریخ سلطاني) ۱۲۲ مخ کې، احمدشاه بابا درانی په خپل اثر (نامه احمدشاه بابا بنام سلطان مصطفی ثالث عثماني) په ۱۱ – ۱۲ مخونو کې، علي احمد جلالي په خپل اثر (مطالعه تاریخ افغانستان از نګاه عسکری) د دوهم ټوک په ... مخ کې، عبدالحی حبیبي په خپل اثر (د افغانستان پېښلیک) د لومړي ټوک په ۱۵۹ مخ کې دا تائیدوي چې د نادر افشار تر وژلو وروسته افغان مشرانو د کندهار په شیرسرخ کې لویه جرګه جوړه کړه.

په نتیجه کې ویلای شو، چې افغان مشرانو او چارواکو د نادر افشار له وژلو وروسته خپله لویه جرګه په لاره کې نه، بلکې د کندهار په شیرسرخ زیارت کې جوړه کړه. دغه ودانۍ چې له پخو خښتو جوړه شوې ده، تر اوسه هم پر خپل ځای جوړه پاته ده.

دغه راز د شیرسرخ لویې جرګې د جوړېدو د نېټې په باب هم اختلاف موجود دئ، د بېلګې په توګه الفنسټن لیکي چې دغه لویه جرګه د ۱۷۴۷م کال د اکتوبر په میاشت کې جوړه شوه[۷]. همدارنګه علي احمد جلالي[۸] او دغه راز میر غلام محمد غبار[۹] او دغه راز قاضي عطاء الله خان او محمد حیات خان[۱۰] په خپلو آثارو کې لیکي چې د شیرسرخ لویه جرګه د ۱۷۴۷م کال د اکتوبر په میاشت کې جوړه شوې ده. په داسې حال کې چې دغه لویه جرګه د ۱۷۴۷م کال د جولای په میاشت کې جوړه شوې وه.

د انندرام په تاریخ کې د احمدشاه له خوا یو مکتوب د محمدحسین اپریدي په نامه راغلی، په هغه کې دی د خپلې تاج پوشۍ نېټه د ۱۱٦۰هـ کال د رجب د میاشتې اتلسمه د ۱۷۴۷م کال د جولای پنځلسمه یادوي. معنا دا چې د شیرسرخ لویه جرګه د ۱۷۴۷م کال په اکتوبر کې نه، بلکې په جولای کې جوړه شوې وه[۱۱].

## د شیرسرخ د لویې جرګې پرېکړې:

قاضي عطاء الله خان لیکي چې دغه جرګه د دوو مسئلو د حل له پاره راغوښتل شوې وه. لومړۍ د پاچا انتخاب، دوهم د افغانستان د خپلواکۍ او استقلال اعلانول[۱۲].

د پاچا د انتخاب په اړه لویې جرګې نهه

پرله پسې غونډې وکړې. خو په لومړنيو اته غونډو کې ئې پاچا انتخاب نه کړای شو. دليل دا وو چې نورمحمد خان عليزی که څه هم د زياتې تجربې او نفوذ خاوند وو، خو د سخت مزاجۍ له امله انتخاب نه شو. دوهم کانديد حاجي جمال خان بارکزی د زيات قومي ځواک او د قدرت د انحصارولو په وجه، چې مشرانو انديښنه او وېره ورڅخه لرله. هم د انتخاب وړ و نه ګرځېد. په جرګه کې د سياسي او قومي مشرانو غوښتنه دا وه چې يو داسې شخص انتخاب کړي چې په راتلونکي کې پرته له زور زياتي او استبداد څخه پر دوی باندې د جرګه ييزو اصولو او اولسواکۍ پر بنسټ حکومت وکړي او هم له ډېرې غښتلې قبيلې څخه نه وي. دغه دواړې ځانګړتياوې د احمدخان ابدالي په وجود کې چې يو ۲۵ کلن ځوان وو د جرګې د برخه والو له خوا تائيد شوې، ځکه هغه يو حليم، خليق، باتجربه او ازمويل شوی ځوان وو او د سدوزيو قبيله د نورو قبيلو په پرتله د شمېر له مخې کمه او کمزورې وه[۱۳].

بالاخره د نهمې غونډې په ترڅ کې د جرګې برخه وال او يوه روحاني شخصيت صابرشاه کابلي له خوا احمدخان ابدالي، چې ځان ئې د نورو مشرانو په څېر سلطنت ته کانديد کړی نه وو، د پاچهۍ مقام ته پېشنهاد شو او د جرګې د غړو له خوا په اسانۍ سره ومنل شو او د هغه په دستار (پګړۍ) کې ئې د غنمو وږي وتومبل. هغه څه چې د جرګې برخه وال ئې موافقې ته اړل کړل تر ټولو غوره د احمدخان ټولنيز او اخلاقي شخصيت، تجربه، پوهه، وطندوستي او د نادر افشار په اداره او پوځي سوقياتو کې برياليتوبنه ول. دغه راز د احمدخان په انتخاب کې د هغه د کورنۍ لوړ ملي او سياسي دريځ هم اغېزمن وو. ځکه د هغه نيکه دولت خان ابدالي، د هغه کاکا رستم خان ابدالي، پلار ئې زمان خان ابدالي او ورور ئې ذوالفقار خان ابدالي د قوم او د هرات د ابدالي حکومت مشران تېر شوي ول[۱۴] او د هيواد د دفاع او آزادۍ په لاره کې په شهادت رسېدلي ول.

د حيات افغاني په قول، زمان خان ابدالي په ۱۷۲۲م کې د عبدالله خان ابدالي زامنو الله يار خان او سعدالله خان له خوا ووژل شو او احمدخان دغه وخت کوچنی وو، د دې له پاره چې احمدخان له دښمنانو بچ شي د خپلې مور (زرغونه انا) په ذريعه د هرات حاکم حاجي اسماعيل خان عليزي ته وروړل شو او هم مېرمن زرغونې خپله لور اسمعيل خان ته ورکړه، څو دوی ته پناه ورکړي. اسمعيل خان عليزي د دوی پناه ومنله او د ښه خونديتوب په خاطر ئې فراه ته واستول او له دې نېټې وروسته ئې پټ ژوند کول پيل کړل[۱۵]. دغه راز ګنداسنګهه هم دا خبره تائيدوي چې د احمدخان ابدالي پلار زمان خان د ۱۷۱۹ – ۱۷۲۲م کلونو تر منځ ملتان ته سفر نه دئ کړی او نه داسې کوم سند شته، چې ملتان ته د هغه د کورنۍ سفر په ډاګه کړي[۱۶].

د احمدشاه بابا هم مهالی شاعر حافظ مرغزی په ۱۷۶۲م کې په پښتو ژبه (احمدشاهي شهنامه) وکښله او د پېښور د اکاډيمۍ له خوا په وروستيو کې چاپ شوې

ده، د احمدشاه بابا د زوکړې ځای ئې خراسان یعني هرات په ګوته کړی دئ او په لاندې بیتونو کې داسې وایي:

**دی سکندر کشور کشای دی**

**و جهان ته رهنمای دی**

**ښه مولد ئې خراسان**

**په مزاج دی عالي شان**

**د تخت ځای ئې کندهار شه**

**تمام ملک پرې لاله زار شه**[۱۷]

په نتیجه کې د حیات افغاني، دراني احمدشاه او د احمدشاهي شهنامې د آثارو د ځرګندونو پر بنسټ ویلای شو چې احمدخان ابدالي په ملتان کې نه، بلکې په هرات کې زیږېدلی دئ او زه له نن ځخه وروسته له لیکوالو او څېړونکو هیله کوم، چې په خپلو لیکنو او څېړنو کې پورتنۍ سمونه او واقعیت په پام کې ونیسي.

دوهمه مسئله چې شیرسرخ لویې جرګې په یوه اتفاق پرېکړه پر وکړه، هغه د پارس سره د اړېکیو بشپړ شلول او د افغانستان د خپلواکۍ اعلانول وو[۱۸].

د شیرسرخ لویې جرګې اهمیت:

الف: په ملي لحاظ د جرګې ملي اهمیت په دې کې وو چې په جرګه کې د بېلابېلو قومونو مشرانو او استازو فعاله برخه واخیسته او د ملت اراده او یووالی ئې انعکاس کړ. داسې ملي پرېکړې ئې وکړې چې په نتیجه کې د افغانانو ملي یووالی، ملي حاکمیت او خپلواکي تامین شول. دغو ملي ارزښتونو په مجموع کې زموږ د ملي هویت بنسټ کېښېښود.

سره له دې چې اوس مهال د ګوتو په شمېر نوي لیکوالان پیدا شوي دي چې د شېرسرخ لویه جرګه یوه قومي جرګه ګڼي او د هغې ملي اهمیت تر پوښتنې لاندې راولي. د دې له پاره چې د دوی سر مو خلاص کړی وي، تاریخي منابعو ته مرجعه کوو:

د احمدشاه بابا د دربار منشي او د تاریخ احمدشاهي کتاب لیکوال د دې جرګې د ملي ترکیب په اړه داسې لیکي: "ټولو سترو خوانینو، رئیسانو او د لوړو مقامونو چارواکو په یوه شاهانه غونډه کې له خاصو او عامو وګړو سره له مصلحت او مشورې وروسته په یوه اتفاق احمدخان په پادشاهۍ وټاکه ... کابلیانو او قزلباشو مشرانو چې د احمدشاهي سلطنت په ټینګتیا کې برخه درلوده، په زیاتو انعامونو باندې وویاړل شول[۱۹]. دغه لومړی لاس اثر د پښتنو تر ځنګ د کابلیانو (تاجکو) او قزلباشو ګډون تائیدوي.

په مجمل التواریخ کې راغلي، چې د نادر افشار له وژلو وروسته افغان او اوزبک لښکر د کندهار پر لور وخوځېدل او کندهار ته په رسېدو سره د محمدتقي خان شېرازي په مشرۍ هغه خزانه چې له هند ځخه ئې نادر افشار ته وروړله ونیوله او محمدتقي خان ئې په مهربانۍ سره له ځانه سره وساته او د نادر افشار د وژلو خبر ئې ورکړ. محمد تقي خان د دغه خبر له اورېدو وروسته له یوې ډلې قزلباشو سره د احمدخان خدمت قبول کړ او په کندهار کې پاته شو[۲۰]. دغه راز مینورسکي لیکي چې د نادر افشار له وژلو وروسته د احمدخان ابدالي په مشرۍ د افغان ابدالیو او

اوزبکو لښکر بیرته کندهار ته ستون شو، څو د خپل هیواد برخلیک وټاکي[۲۱].

سربېره پر دې میر غلام محمد غبار، مونټ ستوارټ الفنسټن، قاضي عطاء الله خان، محمد حیات خان، سید بهادرشاه ظفر کاکاخېل، عبدالحمید مبارز، سلطان محمد خان درانی په خپلو اثارو کې لیکي چې د شیرسرخ په لویه جرګه کې پښتنو، تاجکو، هزاره ګانو، قزلباشو، بلوڅو او اوزبکو ګډون درلود. همدارنګه په تاریخ کې ځیني داسي جرګې هم جوړې شوي دي چې د جوړښت او ترکیب په لحاظ ملي وې، خو د هغوی پرېکړې ملي نه وې. یا دا چې جرګې وړې وې، خو پرېکې ئې ملي وې او نو ځکه د ملي اهمیت وړ بلل کېدای شي. په داسي حال کې چې د شیرسرخ لویه جرګه د ملي ترکیب او پرېکړو له مخې ستر تاریخي اهمیت لري.

ب: په سیاسي لحاظ: د شیرسرخ لویي جرګې سیاسي اهمیت دا وو چې د افغانستان له پاره ئې د جرګه ییزو او دیموکراتیکو اصولو پر بنسټ سیاسي دولتي مشر وټاکه. د خپلواکۍ او د یوه خپلواک دولت د جوړولو اعلان ئې وکړ. د هیواد سیاسي حاکمیت او د هغه د پلي کولو له پاره ئې ضروري او تاریخي عناصر برابر کړل. احمدشاهي دولت د جرګې او مشورې پر بنسټ جوړ او لا اقل د خپل سلطنت په دور کې ئې د جرګې پر بنسټ دوام وکړ[۲۲].

ج: په تاریخي لحاظ: د جرګې تاریخي اهمیت په دې کې وو، چې په حساسو او تاریخي شېبو کې ئې تاریخي پرېکړې وکړې. د هیواد د خپلواکۍ اعلانول او د پاچا انتخابول، هغه ستر تاریخي کار وو چې د وخت او ملت تر ټولو ستره اړتیا وه. د جرګې پرېکړو ځکه تاریخي اهمیت درلود چې د هغوی په نتیجه کې افغانستان یو ځل بیا د خپل ملي، تاریخي، جغرافیایي خپلواک هویت څښتن شو او بې له شکه دغه لویه جرګه د افغانستان د معاصر تاریخ مؤسسه ګڼلای شو. د شیرسرخ لویه جرګه د افغانستان د لرغونو او معاصرو تاریخي جرګو یوه قانونمنده سلسله بللای شو. همدا دلیل دئ چې لوی ادیب او مؤرخ پوهاند حبیبي د شیرسرخ جرګې ته یوه لویه تاریخي جرګه وایي[۲۳] او تاریخپوه غبار لیکي چې دې ملي جرګې د ارزښت وړ تاریخي کار بشپړ کړ[۲۴] او ګنداسنګه د شیرسرخ لویي جرګې ته د تاریخي غونډې خطاب کوي[۲۵].

## نتیجه:

د پورتنۍ څېړني په نتیجه کې ویلای شو، چې د شیرسرخ لویه جرګه د ۱۷۴۷م کال په جولای کې د افغانستان د خپلواکۍ د اعلانولو او د پاچا د انتخاب په خاطر د کندهار په شېرسرخ زیارت کې جوړه شوه. د هیواد خپلواکي ئې اعلان کړه او احمدخان ابدالي ئې د افغانستان د پاچا په توګه وټاکه. دغه لویه جرګه د ترکیب او پرېکړو په لحاظ د ملي، سیاسي او تاریخي اهمیت لرونکې وه. د دې لوّیي جرګې له خوا انتخاب شوی پاچا، احمدخان ابدالي په ۱۷۲۲م کال د هرات په لرغوني او تاریخي ښار کې زېږېدلی او په ۱۷۷۳م کال په کندهار کې وفات شو.

ماخذ او منابع :


۱. عبدالحی حبیبي: د افغانستان پښتلیک، لومړی ټوک، کابل، د بیهقي د کتاب خپرولو مؤسسه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۳، ۱۵۱ – ۱۵۹ مخونه.
۲. گنداسنگهـ: درانی احمدشاه، د نصرالله سوبمن ژباړه، د افغانستان د علومو اکاډیمي، کابل، دولتي مطبعه ۱۳٦٦، ۲۵ مخ.
۳. محمد مهدي استرآبادی: تاریخ جهانگشای نادری، تهران، دنیای کتاب، ۱۳۸۷، ۴٦۱ – ۴٦۲ مخونه.
۴. مینورسکي، ایران در زمان نادرشاه، د رشید یاسمي ژباړه، تهران، دنیای کتاب، څلرم چاپ، ۱۳۸۵، ۴۵، ۱۹۷ مخونه.
۵. ابوالحسن بن محمد امین گلستانه، مجمل التواریخ، تهران، کتابخانه ابن سینا، ۱۳۴۴، ۵۹ – ٦۰ مخونه.
٦. محمودالحسیني بن ابراهیم جامي، تاریخ احمدشاهي،تهران،عرفان،۱۳۸٦،۵۹–٦۰مخونه.
۷. مونټ سټوارټ الفنسټن، د کابل سلطنت بیان، دوهم ټوک، د محمد حسن کاکړ ژباړه، کابل، دولتي مطبعه، ۱۳٦۱، ۲۴۷ مخ.
۸. علي احمد جلالي، مطالعهٔ تاریخ افغانستان ز نگاه عسکری، جلد دوم، کابل، مطبعه دفاع ملی، ۱۳۴۷، ۲۵ مخ.
۹. میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، چاپ سو، مرکز نشر، انقلاب باهمکاری جمهوری، ۱۳٦٦، ۳۵۴ مخ.
۱۰. قاضی عطاء الله خان، د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، کابل، دفاع مطبعه، ۱۳۵٦، ۱۱۵ مخ.
محمدحیات خان، حیات افغاني، لومړی او دوهم ټوک، د فرهاد ظریفي او طالبي ژباړه، دوهم چاپ، پېښور، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸٦، ۹۰ مخ.
۱۱. ډاکټر گنډاسنگهـ، درانی احمدشاه، د نصرالله سوبمن ژباړه، کابل، دولتي مطبعه، ۱۳٦۲، ۴۲ مخ پاورقي.
۱۲. قاضي عطاء الله خان، د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، کابل، دفاع مطبعه، ۱۳۵٦، ۱۱۴ مخ.
۱۳. عبدالحی حبیبي، تاریخ مختصر افغانستان، دوهم ټوک، کابل، دولتي مطبعه، ۱۳۴۸، ۸٦ مخ.
۱۴. ډاکټر محمدحسن کاکړ، افغان و افغانستان، کابل پوهنتون، ۱۳۵۷، ۸۲ -۸۳ مخونه.
۱۵. محمدحیات خان، حیات افغاني، د طالبي ژباړه، دوهم چاپ، پېښور، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸٦، ۱۴۹ مخ.
۱٦. گنډاسنگهـ، درانی احمدشاه، د نصرالله سوبمن ژباړه، د علومو اکاډیمي، ۱۳٦٦، ۲۱ مخ.
۱۷. حافظ مرغزی، شاهنامهٔ احمدشاه ابدالی، د مشتاق احمد مشتاق ترتیب او تدوین، پېښور، پښتو اکاډیمي، ۱۹٦۵، دیباچه، گهـ، ۱۲ مخ.
۱۸. گنداسنگهـ، درانی احمدشاه، د علومو اکاډیمي، ۱۳٦٦، ۳۹ مخ.
۱۹. محمودالحسیني، بن ابراهیم جامي، تاریخ احمدشاهي،تهران،عرفان،۱۳۸٦،۵۹–٦۰مخونه.
۲۰. ابوالحسن بن محمد امین گلستانه، مجمل التواریخ، تهران، کتابخانه ابن سینا، ۱۳۴۴، ٦۰ – ٦۱ مخونه.
۲۱. مینورسکي، ایران در زمان نادرشاه، تهران، دنیای کتاب، ۱۳۸۵، ۴۵، ۱۹۷ مخونه.
۲۲. ډاکټر محمدحسن کاکړ، افغان و افغانستان، کابل پوهنتون، ۱۳۵۷، ۸۲–۸۳ مخونه.
۲۳. عبدالحی حبیبي، تاریخ مختصر افغانستان، جلد دوم، کابل، دولتي مطبعه، ۱۳۴۹، ۸٦ مخ.
۲۴. میر غلام محمد غبار، احمدشاه بابا افغان، د امین الله دریځ ژباړه، پېښور، دانش کتابتون، ۱۳۷۷، ۲۷ مخ.
۲۵. گنداسنگهـ، درانی احمدشاه، د علومو اکاډیمي، ۱۳٦٦، ۳۴ مخ.

پوهندوی بريالی باجوړی

# د احمدشاه بابا اخلاق، عادات او ځيني ژوند پېښي

د احمدشاه بابا په وجود کي د ځلميتوب له وخته د يو ستر فاتح، زړه سواند ټولواک او يو مدبر سياستمدار نخښي ښکارېدې. هغه وخت چي دی ځلمی وو او د نادر افشار په بانفوذه افسرانو کي وو نو د ده په اړه د صابرشاه او په خپله د نادرشاه افشار وړاندويني په تاريخونو کي ثبت دي. هغه وخت چي نادر افشار په خپل دربار کي له تضادونو او اختلافاتو سره مخامخ وو. يوه شپه ئې ده ته وويل: "من در سيمای تو می بينم که روزی قدرت بزرگ را کسب کرده و درآن زمان به خاندان من وفادار باشی".

ارواښاد ببنوا صاحب هم د افغانستان نوميالي په دريم ټوک کي د ده د غوره خويونو په اړه د نادر افشار يوه خبره را اخيستې چي وايي: "من در ايران و هندوستان و توران مردی چون احمدخان حميده خصال و پسنديده افعال نديده ام".

د احمدشاه بابا دغه نېک خويونه او ځوانمردي چي کله دی پاچا شو د ده په ژوند پېښو کي ډېري رابرسېره او ځلېدې. د افغانستان د تماميت او د قومونو د وحدت له پاره ئې هلي ځلي پيل کړې. د مختلفو قومونو له مشرانو څخه ئې يوه جرګه جوړه کړه چي د دولت په کارونو کي به ئې د دوی مصلحت اخيسته.

په ټولنه کي د روحانيت او عملاوو له نفوذ څخه باخبره او د وخت د لويو روحانيونو لکه ميا فقيرالله جلال آبادي، د څوکنو ميا عمر صاحب او په هند کي ئې د شاه ولي الله دهلوي سره اړيکي او مکاتبه درلوده. د دې اړيکيو يوه وجه دا هم ده چي دی د تصوف په رموزو آګاه او د عرفان او طريقي خاوند وو، چي مثالونه ئې په ديوان کي موندی شو.

احمدشاه بابا يو عالم، عارف او صاحب ديوان شاعر وو. علماوو ته ئې تل په درنه ستر ګه کتل. د قلم خاوندان ئې د توري له خاوندانو څخه کم نه ګڼل. همدغه وجه وه چي عالمان او بزرګان به د ده ښي لاس ته کښېناستل او د توري خاوندان به ئې کيڼ لاس ته.

احمدشاه بابا د خمتا کالي اغوستل او پر پوست به کښېناسته. فقيرانه ژوند ئې خوښاوه. ده غوښتل چي د ده د دربار اراکين هم د خمتا کالي واغوندي او له عوامو سره يو شان وي. همدغه وجه وه چي يو ځل ئې د سوداګرانو رنګه ټوکران وسوځول او هغوی

ته ئې د ټوکرانو قیمت ورکړ. غوښتل ئې چې خپل ځان او درباریان ئې له عوامو څخه لوړ معلوم نه سي او له بلي خوا د وطن محصول تقویه سي.

ټوله یــــو دي که غلـــجي که اودالي
ښه هغه چي ئې د زړه ښیښه صفا ده
چي عمل ئې د نېکۍ وي مـــېړه هغه
که اغوســـــتې ئې ګدله د خمــــتا ده

احمدشاه بابا جګړې ته زړه نه ښه کاوه مګر هغه وخت چي مجبور به شه. نو بیا به ئې تر هغه جګړه کوله چي حریف به مات شو او فتح به د ده په برخ شوه. بیا به ئې د فتحه شوي سیمي واک د هماغي سیمي یو باصلاحیته شخص ته وسپاره او خپل با اعتماده شخص به ئې د هغه په څنګ کي وټاکه چي مرکزي دولت ته وفادار وي.

د احمدشاه بابا سره د تېر تاریخ تجربه وه چي ډېر افغاني قومونه په هند کي له خپل پلرني ټاټوبي څخه لیري شول نو بیا ئې دې خوا ته دومره پام نه وو. مخکي مي یادونه وکړه چي د احمدشاه بابا په یو لړ ژوندپېښو کي د ده مردانګي، توره، زړه سوی او لوی والی په ښه توګه تمثیل سوی چي زه ئې د خو پېښو یادونه کوم.

د پاني پت د جګړې له پیل نه دمخه ئې د دکن سپه سالار بهاو ته د سولي پیغام ولېږه، خو بهاو دغه پیغام په ډېرو ترخو الفاظو رد کړ او وې ویل چي که تر کابله پوري ټوله مځکه موږ ته پرېږدي نو سوله به وکړو. کله چي احمدشاه بابا دا جواب واروېد نو وې ویل چي اوس د وینو په تویولو کي زموږ مسئولیت نشته. موږ خپلي غاړي خلاصي کړې. د پاني پت په دغه جګړه کي د مرهټه وو د پېشوا بالاجي راو ځلمی زوی بسواس راو او د ده د تره زوی سداشیوبهاو ووژل سول. احمدشاه بابا د دوی تعزیت نامه په دکن کي بالاجي ته د یو استازي په لاس ولېږله. په تعزیت نامه کي احمدشاه بابا د بسواسراو په ځوانیمرګۍ او د بهاو پر وژل کېدو افسوس ښکاره کړی وو او دا ئې هم لیکلي وه چي ما دوی ته د سولي وړاندیز وکړ خو دوی ځوانان ول. وینه ئې ګرمه وه. زما د سولي پېشنهاد ئې رد کړ.

په دغه جګړه کي په یو روایت دوولس زره او په بل روایت دوه ویشت زره مرهټیان اسیر شول او احمدشاه بابا د شجاع الدوله په شفاعت خوشي کړل او هر یو ته ئې دوې دوې روپۍ او یوه شړۍ وبخښله.

همدارنګه په یوه بله پېښه کي د احمدشاه بابا لوی والی او عظمت وینو چي په تاریخ کي ئې ساری نه لیدل کېږي.

میر معین الملک چي په میرمنو مشهور وو او د ډهلي د دربار له خوا د لاهور والي وو د څو کالو مالیه چي څورلس لکه روپۍ وې احمدشاه بابا ته را و نه لېږله.

احمدشاه بابا چي کله د لاهور شاوخوا ته راورسېد. میرمنو هم جنګ ته راووت. تر ماتي وروسته د احمدشاه بابا حضور ته راغی. احمدشاه بابا تر ېنه پوښتنه وکړه:

- ای توریالیه! که زه ستا په لاس کښېوتلی وای څه به دي راسره کړي وای؟

- میرمنو په جواب کي وویل: ککری

به مي درته پرې کړې وای او د ډهلي د پاچا حضور ته به مي استولې وای.

- احمدشاه بابا ورته ومسل او وې ویل: اوس زه درسره څه وکړم؟

- میرمنو وویل: د باچا له رحم څخه مجرمان د بخښني هیله لري که رحم کوې ومي بخښه او که ظلم کوې دا مي سر دئ پرې ئې کړه.

احمدشاه بابا دی وباخښه. د رستم هند لقب ئې ورکړ او بیرته ئې د لاهور والي وګوماره.

همدارنګه د بلوجستان حکمران نصیرخان بلوڅ د طبس والي مردان علي خان، د نیشاپور والي عباس قلي خان هم د احمدشاه بابا په وړاندې یاغیان شوي ول او وروسته له جګړو او ماتو نه احمدشاه بابا بخښلي او خپل خپل منصبونه ئې بیرته ورکړي دي.

احمدشاه بابا د خپلو عسکرو ډېر خیال ساته. د قاضي عطاء الله خان په قول وایي چې عسکرو ته به د ده په وړاندې معاش ورکول کېده.

د عسکرو په اړه یوه پېښه داسې ده چې د نیشاپور په محاصره کې عسکر له تنګدستۍ سره مخامخ شول. شاهي خزانه ئې لوټ کړه. خزانه دار استغاصه وکړه. اما هیڅ جواب ئې تر لاسه نه کړ. بیا ئې له عسکرو سره په ګستاخۍ لاس پوري کړ. کله چې احمدشاه بابا ته خبر ورسېد نو وې ویل:

-اې نادانه! زه هم له دغو نه یم چې د دوی د توري په زور دولت ته رسېدلی یم. نو څکه دوی په خپل دولت کې ګنم. په هر وخت کې چې دوی زما له مال نه چې په حقیقت کې د دوی د همت نتیجه ده، څه وغواړي او زه ئې ور نه کړم د خالق په نزدبه ملامت یم.

قاضي عطاء الله خان د احمدشاه بابا په اړه وایي: "پادشاه په دربار کې تېتهدل او مڅکه مچول شرک ګڼل او حکم ئې کړی وو چې هر سړی دې بادشاه ته نېغ په تندي لاس ړدي او سلام دې کوي. قوانین له څانه نیولي په ټولو یو شان تطبیقول. د قبایلو په کورنیو شخړو کې به لکه د یو ساده پښتون غوندي کښېناسته او مسایل به ئې حلول. په جګړه کې به ئې د خپل پوځ انتظام په خپله کاوه، په عزم غښتلی او هیڅ مشکل له خپل عزم څخه نه شوای اړولی.

په یوه بله پېښه کې وینو چې احمدشاه بابا څومره پر غریبانو مهربانه وو. وایي چې احمدشاه بابا د خپل امدن څلرمه برخه پر بې وزلانو، طالبانو او یتیمانو وېشله. یوه شپه په کندهار کې پر یو بې وزله نابلده مسافر پېښ سو، چې مېرمن ئې د لنګون په درد اخته وه او دی ورته وارخطا او ناکراره وو. احمدشاه بابا چې دا حال ولید دغه شخص ته ئې څلوېښت روپۍ ورکړې او خپله ملکه ئې د هغې مېرمني د خدمت له پاره ورته راواستوله.

په همدې ډول کله چې احمدشاه بابا د پاني پت له سوبې څخه راستون شو نو په ډهلي کې یوه ورځ خبر شو چې د ده هغه خاص خبریال د پاني پت په غزا کې شهید

شوی چې ده ته به ئې د مرهټه وو د برید خبر ورکاوه. احمدشاه بابا سمدستي د هغه شهید کور ته د فاتحې له پاره ورغی. د هغه کونډې ته ئې ځیني شیان وروبخښل او د ده زوی ئې د پښتانه امیرالامراء نجیب الدوله یوسفزي په دفتر کې مقرر کړ.

د احمدشاه بابا د ژوند یوه بله په زړه پورې پېښه د ده له دینداری او له بلې خوا د ده د شعر پېژندنې سره اړه لري په دې ډول ده:

د احمدشاه بابا د زمانې یو ایرانی شیعه مؤلف رستم الحکماء محمدهاشم د رستم التواریخ په (۲۳۳ مخ) کې لیکلي دي:

"احمدشاه درانی د علم، فضل او کمال څښتن وو. د صورت او سیرت ښکلا ئې په خپله زمانه کې ساری نه درلود. په شعر ډېر ښه پوهېده. حلم او حوصله ئې خورا ډېره وه. د ده د علم او ځوانمردی په باب سید حسن صفوي نکل کاوه: په (۱۱۸۰هـ ق) کال زه څو ورځې په کندهار کې د احمدشاه دراني مېلمه وم. یو جاسوس خبر راوړ چې په قاین کې یو شیعه شاعر په یو نظم کې د شیخینو (حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما) او د اهل سنتو د نورو مشرانو او هم په خپله د احمدشاه دراني او د ده د کورنی ډېره سخته غندنه کړې ده او دوی ټولو ته ئې ردبد ویلي دي. د خدای پېښه ده. زه د احمدشاه په دربار کې حاضر وم چې هغه هجوه کوونکی شاعر ئې د ده دربار ته راوست. پښتانه پاچا ورته وویل: هغه هجوه وواېه!

د دې حکم په اورېدو سره د شاعر غړي وتښتېدل او راپرېووت، د دربار سپاهیانو راپورته کړ. احمدشاه بابا ورته وویل: پر هجوه دې نه وژنم که دې شعر ادبي ارزښت درلود انعام به هم درکړم.

د دې خبرې په اورېدو سره په شاعر کې ساه وچلېده او خپله هجویه قصیده ئې واوروله. احمدشاه په شعر ډېر ښه پوهېده. ادبي ذوق ئې درلود. د شاعر قصیده ئې چې واورېدله. د هغې ادبي ارزښت ئې وستایه، شاباسی ئې ورته ووایه. سل تومنه ئې وروبخښل. تر دغو نازولو وروسته ئې له شاعر څخه پوښتنه وکړه: زه او ته خو د یوې زمانې خلک یو تا چې زما او زما د کورنی په باب څه رد بد وویل دا به دې اورېدلي وي. هر څوک دښمنان لري او بد پسې وايي مگر د خلفاء راشدینو له زمانې څخه یو زر و یو سلو څو کاله تېر سوي دي. ته د هغو په بدیو څنگه خبر سوې؟

شاعر له شرم نه سر کښته واچاوه او هیڅ ئې و نه ویل.

احمدشاه بابا وویل:

د خدای لعنت دې پر تا وي. د شیخینو د ښکنځلو جزا دې خدای درکړي. وروسته له دې نه احمدشاه شاعر یو سپاهي ته وسپاره چې خوندي ئې قاین ته ورسوي او د قاین له حاکمه څخه ئې د رسېدلو خط راوړي".

احمدشاه بابا یو دین داره او پرهېزگاره شخص وو. د پنډت کاشي راو هندو له قوله چې د پاني پت په جگړه کې حاضر وو او د

شجاع الدوله د استازي په توگه به ئې د احمدشاه بابا دربار ته تگ او راتگ کاوه وايي: احمدشاه بابا د شپې په وروستۍ دريمه برخه کي ويښ وو د تهجد لمونځ به ئې کاوه او قرآنکريم به ئې تلاوت کاوه.

که څه هم احمدشاه بابا يو زورور پاچا وو خو شاهي تجمل او کر و فر ئې نه خوښېده. له خپل دربار څخه ئې د هند او ايران د شاهي دربارونو پرتکلفه آداب او رسوم ليري کړي ول او په يو عادي سلام کفايت کېده. ژوند ئې ساده او له هر ډول تصنع څخه سپېڅلی وو. له اعتدال نه ئې هيڅکله تېری نه کاوه. خاکساره او بې تکلفه ژوند ئې تېراوه. په خپله بې د غريبانو او بې وزلو حال پوښته، کورونو ته به ئې ورتلی او که کومه ستونزه به ئې درلوده هغه به ئې حل کوله. په طبيعت کي ئې غرور او لويي نه وه. د رعايت سره ئې په مينه او مهربانۍ چلند کاوه. پنځه وخته به ئې لمونځ په جماعت کاوه او په مسجد کي به د غريبانو سره په يوه صف کي درېده. د ده دربار ته د هيڅ يو عارض ورتگ منع نه وو. هره ورځ به ئې سل فرسنگه د آس سپرلي کوله. د جنگ له اسبابو سره به پر بوته او همېشه به يو زين کړی آس د ده د خوب د خوني دېوال ته ولاړ وو. لښکريانو ئې په حکم کي يوه لحظه ځنډه هم نه کاوه. ډېر وسيع النظره پاچا وو. د ده په قلمرو کي هندوانو، عيسايانو او يهودانو خپل مذهبي دودونه په آزادۍ سره تر سره کول او خوندي ژوند ئې درلود.

مرگی ښه دئ په دنيا کي
نه چي څوک سي بې وفا
سر په تېغ پرې کړی ښه دئ
تر بې پته پر دنيا

ماخذونه:


۱. رشاد، اکاډيمسن پوهاند عبدالشکور، لوی احمدشاه بابا د خلکو په نظر کي، د افغانستان د علومو اکاډيمۍ د پښتو څېړنو بين المللي مرکز، ۱۳۷۰ش، د ښوونې او روزنې مطبعه.
۲. حافر مرغزی، احمدشاهي شاهنامه، پېژندنه او تعليقات د علامه اکاډيمسين پوهاند عبدالشکور رشاد، سريزه او لمن ليکونه د محمدمعصوم هوتک، ۱۳۸۷ش، کندهار.
۳. حبيبي، عبدالحی، د افغانستان لنډ تاريخ، ژباړن عبدالرؤف بېنوا، دانش خپرندويه ټولنه، ۱۳۸۷ش.
۴. هيوادمل، سرمحقق زلمی، د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغونې او منځنۍ دورې) دوهم چاپ، دانش خپرندويه ټولنه، ۱۳۷۹ش.
۵. د لوی احمدشاه بابا ياد، د افغانستان د علومو اکاډيمي، د پښتو څېړنو نړۍ وال مرکز. ۱۳۸۲ش، د آزادۍ مطبعه.
۶. کهزاد، احمدعلي، بالاحصار کابل و پيش آمدهای تاريخی، جلد اول و دوم، بنگاه انتشارات ميوند، ۲۰۰۸ ميلادی، مطبعه ميوند.

# د سقراط تلپاته نظریات

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقیري

دوهم کتاب

لومړی فصل

د سقراط او اریستیپوس تر مینځ د لذت او اعتدال په باب ډیالوګ

سقراط خپل اورېدونکي د لاندي استدلال په زور دېته هڅول چي لوږه او تنده وزغمي، د میني له طلسم او کشش سره مقاومت وکړي، له لتي ځخه لیري وښوري، او خپل ځان د هر راز شاقه کارونو او ستړیا سره اشنا کاندي. ځکه کله چي سقراط ته وویل سول چي د هغه یو سامع او لاروی خورا اسرافي او عیاش ژوند کوي، سقراط له خپل لاروي څخه دا پوښتنه وکړه: «اریستیپوسه، که چیري تاته د دوو ځوانانو د تعلیم او تربیې چاري در وسپارل سي، او هغه پدې شرط چي یو به حاکم او بل به عادي او ملکي شخص

تربیه کوې، تا به هغوی څرنګه روزلي وای؟ راځئ چې د هغوی له تغذیې او خورک څخه یې را شروع کړو، ځکه همدا د ټولو ژوندیو شیانو اساس دی.» اریستیپوس په جواب کې وویل: «دا درسته خبره ده. غذا زموږ د ژوندانه بنسټ تشکیلوي، ځکه که چیري انسان ته غذا و نه رسېږي، هغه به ډېر ژر مړ سي.» سقراط ورته وویل، « ته به هغوی دواړه پدې عادت وې چې پر ټاکلي وختونو باندي څه نا څه ډوډۍ وخوري او اوبه وڅښي. » اریستیپوس په جواب کي وویل، «همدا ډول ده، او زه دا کار کوم.» مګر سقراط ورته وویل، «له دواړو څخه به دي کوم یوه ته دا ور زده کړي وای چې تر مړېدو مخکي له ډوډۍ خوړولو څخه ډډه وکړي؟» اریستیپوس وویل، «حاکم ته، پرته له کومه شکه. هغه څوک چي باید د حکومت چلولو وړ سي، ځکه زه نه غواړم چې د هغه د ځنډ او لټۍ په خاطر د جمهوریت کارونه خراب سي.» سقراط بیا وپوښتل، «له دوی دوو څخه کوم یو ته دي دا ښودل چې د تندي په وخت کي د اوبو څښلو څخه ډډه وکړي، لږ خوب وکړي، نا وخته کټ ته د استراحت لپاره ولاړ سي، سهار په سپېدو راپاڅېږي، د شپو په تیارو کي ګزمې او څار وکړي، متقي او سپېڅلی ژوند وکړي، خپل خواړه عادتونه او تمایلات کنټرول کاندي، له ستړیا او زحمت څخه ځان بچ نه کړي، او په ورین تندي دا هر څه ومني؟» اریستیپوس په جواب وویل، « زما بیا هم

هغه پخوانۍ خبره ده.» سقراط ترې بیا وپوښتل، «په دوئ دواړوه کي به کوم یو ته هغه هنرونه او مهارتونه ور وښیې چې د دښمن پر ماتولو ئې وتوانوي؟» اریستیپوس وویل، «البته، هغه ته چې سیاسي مشر کېږي، ځکه د همدغو مهارتونو پرته نور ټول هنرونه به دده په درد و نه خوري.» سقراط وویل، «زه ګومان کوم هغه څوک چې دا راز تربیه او ورزل سي، هغه به دښمن ته اجازه ور نه کړي چې دی داسي غافلګیره کړي، لکه څنګه چې اکثره حیوانان د ښکاري په لومه کي بندیږي. ځکه ځیني حیوانات د خېټي پالني (شکم پرستي) له وجي ځانونه سټ وي، په تېره بیا هغه حیوانات چې دانه مو ورته پاشلې وي، او یا موږ هغوی د اوبو د څښلو پر مهال نیسوو. ځیني په تورونو او جالونو باندي نیسوو، او ځیني بیا د هغوی له ډار ، وارخطایي او احتیاط سره سره په دامونو کي بندوو. ځیني مرغان او ژوي د شهوت له امله ځانونه په بلا کي اچوي. زرکي او هیلۍ د خپلو مادو د اوازونو په خاطر د ښکاري منګلو ته ورځي، ځکه د مادو خوږو او شهواني اوازونو هغوی بې سده کړي وي، او لکه ړانده د ښکاري خور سوي تور ته ور ننوزي.» دلته، اریستیپوس وویل،«ته درست وایي.» سقراط زیاته کړه، «اوس نو، ایا دا د یو شخص لپاره لویه رسوایي نده چي لکه یو بې عقل حیوان په دغه راز تور او دام کي بند سي؟ ایا همدا د هغو ناکارانو انجام نه وي چي د مړوښو ښځو د خوب په

کوټو کي د پردو تر شا او یا هم د کالیو په الماریو کي خپ او لړزانه ناست وي، حال دا چي پدې ښه پوهېږي چي هغه څه چي کوي، نهایت خطرناک دي؟ هغوی پدې هم پوهېږي چي قانون د دغه راز جنایاتو پر خلاف سخت مجازات تصویب کړي دي. دوی خپله هم پوهېږي چي تل ځارل کېږي، او که چیري یو وخت لاس پر لاس پر ونیول سي، د هغوی سره به چندان نرم سلوک و نه سي. په بل عبارت، هغوی مجازات کېږي، او لکه نور جنایات کاران تل رسوایي او بد شهرت ورسره مل وي. بل پلو، هغوی پدې هم ښه واقف دي چي هلته په زرهاوو داسي مشروع او ویاړن کارونه سته چي دوی له همدې له شرمه ډکو مشغولاوو څخه راوګرځوي. خو اما بیا هم دوی همدغو شریرو او خطرناکه کارونه ته په شوق ور دانګي. اوس نو، دېته پرته له سپېره شررات او فسق څخه بل څه نوم ورکولای سو؟» اریستیپوس وویل، «زه هم همداشان فکر کوم.» سقراط خپلو خبرو ته ادامه ورکړه او وې ویل، « تاسو پدې کي څه وایاست چي د ژوندانه دوه ډېر اهم او ضروري کارونه لکه جنګ او کرهنه او مالداري په ازاده فضا او بهر کي تر سره کېږي، خو بر عکس د انسانانو زیاته برخه په بهر کي کارونه ته زړه نه ښه کوي، ځکه هغوی له تودخي او سړو څخه ځانونه ساتي. ایا دا یو ستر غفلت ندی؟ او ایا ته فکر نه کوې هغه کس چي د نورو امر او مشر کېږي، باید د هر موسم سره ځان عیار کړي او هر کړاو وزغملای سي؟»

اریستیپوس په جواب کي وویل، «فکر کوم چي هغه باید همدا خصوصیات ولري..» سقراط وویل، «نو ایا داسي نده چي هغه خلګ د لیډرشیپ جوګه دي چي صابر وي او سختی ګاللای سي. او هغه خلګ چي له دغو کارونو څخه یو هم نه سي کولای هیڅکله باید د هیڅ رسمي مقام لپاره ځان مناسب و نه ګڼي؟» اریستیپوس ددې خبري سره موافقه وښوده او سقراط خپلو خبرو ته ادامه ورکړه.

«څرنګه چي ته پوهېږې چي دا دوه کسان کوم کوم مقامونه باید اشغال کاندي، اوس نو، تا په کومه ډله کي حساب کړو؟» رایستیپوس وویل، «ما! زه به څه ووایم، خو قطعا نه په هغه ډله کي چي باید حکومت وکړي. ځکه سیاسي حاکمیت او اداره هغه شی دی چي زه به یې هیڅکله هم خوښ نه کړم. هغه خلګ باید حکومت وکړي چي د سیاسي حاکمیت شوق لري، زما خپله د هغوی پر مقام باندي کست نه کېږي. ځکه کله زه فکر کوم چي زموږ لپاره د خپلو شخصي هیلو او تقاضاوو پوره کول ګران کار دی، نو بنا زه نه غواړم چي د ټولو پرګنو د هیلو او ضرورتونو د پوره کولو درونډ بار او مسولیت ته اوږه ورکړم. زه نه غواړم چي یو داسي کار ته ملاوتړم چي له هغو شیانو باید ورته تېر سم چي موږ یې د درلودلو او کولو هیله لرو. په بل عبارت، زه نه غواړم چي یو داسي اجتماعي مسولیت ته غاړه کښېږدم چي که چیري د ټولو خلګو ګرده

غوښتني او هیلي پوره نه کړم، ملامت ګڼل کېږم. زه فکر کوم چې پدې چارو کې ښه زيات حماقت پروت دی. څکه جمهوريت له خپلو ماورینو او استازو څخه داسي استفاده کوي لکه زه چې يې له خپلو مريانو څخه کوم. زما غلامان مجبوره دي چې ماته اوبه او خورک پر وخت برابر کړي. او دغه راز هغوی باید زما د قومندې سره سم زما نوري غوښتني هم پوره کاندي، هغه هم په داسي ډول چې هیڅکله باید زما شیانو او خوړو ته لاس ور نه وړي. پرګني هم خپل حاکمان همداشان کاروي. خلګ له خپلو حاکمانو څخه غواړي چې د هغوی لپاره هر څه په پېخر برابر کړي، خو پرګنې حتی د خپل ځان د اصلاح او ښه کولو لپاره حتمي او ضروري کارونه نه کوي. زه فکر کوم ټول هغه کسان چې په حکومتي کارونو کې خوشحاله وي، او غواړي چې نورو ته کاروبار او بزنس جوړ کړي، هغوی د حکومت کولو لپاره مناسب او جوګه دي، مګر پدې شرط چې هغوی هغه راز تعلیم او تربیه سوي وي چې موږ او تاسو يې مخکي بیان وکړ. مګر د خپل ځان لپاره، زما خوښېږي چې هوسا او بې غمه ژوند وکړم.»

په دې وخت کي سقراط وويل، «راځئ چې دا وڅېړو چې ايا حاکمان تر خپل رعيت ښه او خوشحال ژوند لري؟ په اسيا کي چې کوم ملتونه موږ پېژنو لکه د سوريې، فريجين، او ليندين هغوی د پارس د امپراطورۍ تر واک لاندي دي.

په اروپا کي، مايوتينان د سيتين د حاکميت رعيت دي، او په افريقا کي کارتاژ پر باقي پاتي افريقا باندي سياسي سلطه لري. اوس نو، ستا به نظر له هغوی څخه کوم يو ډېر هوسا او خوشحاله ژوند لري؟ راځه چې يو وار همدې يونان ته، چيري چي ما او تا همدا اوس ولاړ يو، څه پام وکړو. اوس نو، ستا په نظر د کومو ملتونو ژوند هوسا او امن دی، ايا د هغو چې سياسي واک لري او که د هغو چې د نورو تر لاس لاندي ژوند کوي؟» دلته اريستيپوس وويل، « زه به هيڅکله دېته غاړه کنښېږدم چې يو غلام واوسم؛ مګر هلته يوه دربيمه لاره هم سته چې نه امپراطورۍ ته لاره وړي او نه هم رعيت کېدو ته، او هغه د ازادۍ او حريت لار ده، او زه کوښښ کوم چې په همدې لاري باندي مسافر و اوسم، ځکه همدا لاره رشتين امن او ارام ته د رسېدو تر ټولو لنډه لاره ده. » سقراط په جواب کي وويل، «که چيري تا ويلي واى چې همدا ستا لار چې نه امپراطورۍ او نه هم رعيت توب ته خمتېږي، يوه داسي لاره ده چې له انساني جامعې له ټولو تماسونو څخه ليري يو بل ځاى موقعيت لري، ښايي ستا په خبرو او نظر کي څه وزن او مطلب واى، خو خبره دا ده چې څرنګه کېداى سي چې هم په انساني ټولنه کي ژوند او ګوزران وکړو، او هم په عين زمان کي نه پر چا حاکميت او سلطه ولرو او نه هم د چا اطاعت وکړو؟ ايا ته دا نه وينې چې زورور پر بې وزلو باندي ظلم کوي، او داسي يې کاروي لکه مريان؟

ایا نه ګورې چې رعیت او اسیر سوي ولسونه تل د حاکمانو له اعمالو څخه غاوو کوي، او د هغوی همدا شکایت، داد او فریاد مورږ په زرهاوو ډولونو باندي په عمومي او خصوصي ژوند کي تل اورو؟ او اوس نو، که چیري همدا حاکمان د یو داسي کس سره مخامخ سي چي د هغوی یوغ ته غاړه نه ږدي، د هغوی ملکونه او کلي خرابېږي، د هغوی زراعت او پټي اړول کېږي، د هغوی ونې او باغونه وهل کېږي. او لنډه دا چي پر هغوی دوامداره حملې تر هغه وخت پوري چلانه وي، تر څو هغوی دېته اړ سي چي مریتوب ته غاړه کښېږدي، او دغه نابرابره جنګ ختم کړي؟ حتی په عامه خلګو کي هم ایا واکمنان ضعیف خلګ تر پښو نه لاندي کوي؟» اریستیپوس وویل، « د همدې لپاره چي په ما هم همدا کانه ونه سي، زه په هیڅ جمهوریت کي ځان نه رااېساروم، ځکه کله دلته او کله هلته اوسېږم. زه فکر کوم چي دا به زما لپاره ډېره ښه وي چي هر چیري لکه پردی واوسېږم.» سقراط ورته وویل، «ستا دغه اختراع یو فوق العاده کشف دی. زه ګومان کوم چي پر لویو لارو باندي د غلو لخوا مسافران د پخوا په شان اوس دونه نه په عذابېږي. زما په عقیده د سینیس، سیرون، پروکرستویس، او د دغي ډلي د باقي پاتي غړو انجام د نورو خلګو لپاره د عبرت درس ګرځېدلی دی (یوه مشهوره د غلو ډله وه چي جمهوریت ختم کړل. مترجم). اوس نو، هغه خلګ چي پر خپلو مېنو او وطنونو باندي پراته دي، او یوازي د خپل جمهوریت په اداري چارو باندي بوخت دي، هغه خلګ چي قوانین د دوی په خوښه جوړ سوي دي، او داسي خپلوان او یاران لري چي مرسته ورسره کولای سي، او د خپل هېواد د دفاع لپاره جګي کلاوي، پاخه ښارګوټي، او وسلې لري، برسېره پردې ئې د خپلو ګاونډیانو سره ایتلافونه جوړ کړي وي، خو بیا هم دا ټول سهولتونه او تفوقونه نه سي کولای چي دوی په کامله توګه د شریرو خلګو له شره وژغوري. ایا ستا غوندي یو څوک کولای سي چي پرته له پورتنیو تفوقونو او اسانتیاو څخه مدام پر داسي لارو باندي امن سفرونه وکړي چي مدام غله او خطرناکه خلګ باندي ولاړ وي، ایا پداسي شرایطو کي تا غوندي یو سړی کولای سي چي پدې لارو باندي امن سفرونه وکړي ځکه چي دی مسافر دی؟ او یا ښایي د کوم دولت لخوا داسي پاسپورټ ورکړه سوي وي چي پر دغو لارو باندي د هغوی امن او ازاد سفرونه تضمین وي؟ او که چیري ستا طالع کار ور نه کړي او تا د مریي په حیث ونیسي، ته به ډېر بد غلام ئې او ستا بادار به هیڅکله ستا څخه کومه ګټه وا نه خلي. ځکه څوک به یو داسي سړی پخپله کورنۍ کي وغواړي چي کار نه سي کولای، خو په عین وخت کي ددې تمه لري چي هوسا او خوندور ژوند ولري؟ راځئ چي دا وڅېړو چي باداران ددې شان غلامانو سره څرنګه چال چلن کوي.

«که چیري دا راز مریان ډېر زیات شهواني وي، د هغوی باداران هغوی روږدي

نیولو ته مجبوروي، تر څو هغوی داسي کمزوري کړي چي نور د جنسي مقاربت لپاره هیڅ ډول اشتها و نه لري. که چیري هغوی غله وي، باداران ئې له غلا څخه د راګرځولو په مقصد خپل ټول باارزښته او قیمتي شیان لاک او مهر کوي، او اضافه قفلونه ور اچوي. که چیري هغوی کودن او لټ وي، موږ هغوی په شلاقو او لښتو وهو. اوس نو، که چیري تا، زما ګران دوسته، یو داشان بېکاره مریي لرلای، ایا تا به همدا کارونه د هغه سره نه وای کړي؟» اریستیپوس وویل، «ما به داسي یوه غلام ته داسي یوه سخته سزا ورکړې وای ، څو هغه مي دېته مجبوره کړی وای چي زما خدمت سم او پر وخت وکړي. مګر، سقراطه، راځه چي خپل پخوانی بحث بیرته له سره را واخلو.»

«څرنګه چي ستا په ګومان په ژوندانه کي تر ټولو ستره خوشحالي په سیاسي امورو کي داخلېدل او برخه اخیستل دي، اوس نو، هغه خلګ چي ستا په ګومان باید د حکومتي چارو لپاره وروزل سي، هغوی باید د هغو خلګو سره په کومو شیانو او لارو کي توپیر ولري چي د ژوندانه ضرورتونو دېته مجبوره کړي وي چي زحمت وګالي؟ څکه ته وایي چي سیاسي مشران باید خپل ځانونه له تندي او لوږي سره عادت کاندي، د ګرمیو او یخونو په مقابل کي مقاومت ولري، لږ خوب او استراحت وکړي، او بل دا چي دوی باید پخپله خوښه په زرهاوو دغه راز نورو وکړاونو ته غاړه کښېږدي. برعلاوه، زه د دې په تفاوت پوه نه یم چي که یو تن په خپله رضا شلاقکاري سې او یا په زوره، په دواړو صورتونو کي بدن شکنجه کېږي، مګر پدې تفاوت چي دا به یو حماقت وي چي یو کس پخپله خوښه درد او کړاو قبول کړي.» سقراط ورته وویل، «څرنګه ته ددې ادعا کوې چي د خپلي خوښي او مجبوریت تر منځ په توپېر باندي نه پوهېږې؟ معنا دا چي هغه څوک چي پخپله رضا او خوښه لوږه او تنده مني، هغه کولای سي چي د خپل فکر سره سم ډوډۍ وخوري. هغه څوک چي پخپله خوښه تنده مني، ښایي داسي وخت او به وڅښي چي اشتها ئې ولري. مګر هغه څوک چي په زوره او د ضرورت په خاطر دېته مجبوره سوی وي چي لوږه او تنده وزغمي، هغه ددې قدرت او صلاحیت نه لري چي هر کله چي ئې زړه وغواړي هغه وخت څه وڅښي او یا څه وخوري. همدا راز، هغه څوک چي پخپله خوښه کړاوونو او چلنجونو ته ور دانګي، هغوی پخپل همدې کوښښ کي ډېري پارونکي او روڼې هیلې رالمسوي، همدا خیال یې د ژوندانه محرکه قوه وي. څکه خو د ښکار ستړیا د ښکاري د راګرځېدو سبب نه ګرځي، څکه د خپل ښکار تعقیب او لاسته راوړل یې نهایي هدف وي. او کله چي خپل مراد ته ورسېږي، هغوی خپل بری د خپلو ستړیاو نتیجه ګڼي، که څه هم ښایي د ښکار ارزښت ډېر کم وي. هغه خلګ چي هڅه کوي چي د ښو خلګو ملګرتیا ترلاسه کړي، او یا چي غواړي پر خپلو دښمنانو

باندي غالب سي، او يا چي د دې نيت لري چي د خپلي کورنۍ د اداري جوګه سي، او يا چي خپل هېواد ته د خدمت هيله لري، ايا همدا خلګ بايد پدې خوشحاله نه وي او ضمير يې ارام نه وي چي د متقي خلګو احترام ئې ګټلی دی؟ ستا د قانع کولو لپاره چي سخت کارونه بايد پر ځان باندي تحميل کړې او کنه، بايد دا ووايم چي دا مقوله په هغو خلګو کي زياته مشهوره ده چي ځوانانو ته تربيه او روزنه ورکوي او هغه داچي هغه سپورټونه چي اسانه کېدای سي، او سمدستي زيات خوند او نتيجه ترې تر لاسه کېږي، هغوی نه سي کولای چي بدن د هغو سختو کارونو د کولو لپاره چمتو او غښتلي کړي چي د سترو کارنامو د کولو لپاره ضرورت ورته احساسېږي، او نه هم په روح کی په کافي اندازه علم او حکمت اړدي. مګر هغه کارونه چي مشکل وي او حوصلې، استقامت او زحمت ته اړتيا لري، هغوی د عالي او تلپاته کارنامو ترلاسه کولو ته لاره ورې. همدا د ښو قاضيانو او حاکمانو نظر دی، او په تېره بيا د هيسيوډ مفکوره همدا وه. هغه يو ځای ويلي ول:

موږ د ګناهونو خواته په ګڼو صفونو کي روان يو

لاره سيده وي، او د ګناه مېنه هم څېرمه وي؛

مګر د تقوا پر لارو تلل زحمت او خولې غواړي،

لوی څښتن له همدې کبله دا امر کړی دی،

چي د تقوا ورشوګانو ته دي اوږده منزولونه وي،

او تر هغه وخت پوري ستاسو کړاوونه نه ختمېږي، تر څو د تقوا څوکو ته نه ياست ختلي.

بل ځای، ايپيچارموس په همدې رابطه کي وايي:

«خدايان خپل رحمت او مرحمت د زحمت او کوښښ په قيمت ورکوي.»

په بل ځاي کي وايي:

اې د خاورو بچيه، د هوسا ژوند له طلسمه ځان بچوه، هسي نه چي درد او غم کامیابه سي.»

«پراډيکوس هم په همدې باندي معتقد دی. په يوه کتاب کي هغه د هرکيليز د ژوند په باب څه ليکي. هلته تقوا او لذت د دوو ښايستو ښځو په جامو کي د هيرکيليز په دربار کي راحاضروي. د هغه خبري تر هغه ځايه پوري چي زما په ياد دي، دا راز وې: «هغه وايي: کله چي هرکيليز د ځوانۍ هغي مرحلې ته ورسېدی چي عموما انسانان عاقل او بالغ ګڼل کېږي او پخپله فيصلې کوي؛ او هغوی د خپلو تصميمونو په لړ کي دا ښيي چي هغوی به په راتلونکي کي د خپل ژوندانه په نويو پړاوونو کي د تقوا لاره غوره کړي او که به د فسق او فجور. هرکيليز په همدې وخت کي د مراقبې او خلوت لپاره يو داسي ځاي ته ولاړی چي د تفکر لپاره مناسب وو. هلته ده پر دې باندي سوچ کاوه چي له دغو دوو لارو څخه کومه يوه انتخاب کړي.

«کله چې هرکيليز هلته په خپلو چورتونو کې ډوب ناست وو، دوې داسي ښځې ئې ولېدې چې تر عادي ښځو څه غټې وې، او دده په لور ور رواني وې. د يوې ښځې څېره نجيبه او مهربانه ښکارېده، د هغې ښکلا طبيعي او زړه وړنکې وه؛ د هغې شخصيت او کړه وړه پاک او ښايسته برېښېده؛ هغې سترګي په خاص انداز کښته د مځکي لور ته نيولې وې؛ د هغې هر حرکت او هر سلوک له عفته ډک وو، او د هغې جامې د واوري غوندي تکي سپيني وې. مګر دا بله ښځه په ټولو شيانو کې تر ها بلي پاتې ښکارېده؛ د عيش او ارام ژوند په وجه ئې بدن چاغ او پړسېدلي غوندي وو. ونه او اندام يې غير متناسب ول، او تندی ئې تريو وو. هغې داسي سنګار کړي وو چې غوښتل يې خپل رنګ څه سور او سپين وبرېښوي، او هغې هڅه کوله چې داسي اداګاني او حرکات وکړي چې زړه وړنکي وي ، خو داسي ښکارېده چې همدا اداګاني ئې عادت نه وې. هغې کوښښ کاوه چې په هر څه کي خيالوره وبرېښي. د هغې په سترګو کي يو څرګند اعتماد ځلېده، د هغې جامې داسي نازکي او شفافي وې چې د هغې ښکلا يې لا ښايسته کوله. هغې مدام ځانته کتل، او وخت نا وخت به يې حاضرينو ته سترګي پدې غرض ور واړولې څو دا معلومه کړي چې څوک ورته ګوري. او کله نا کله به ئې د خپلو اداګانو سيوري ته په خيال کتل.

«څرنګه چې هغوی ور نژدې کېدلې، لومړۍ ښځه د پخوا په شان د ارامو قدمونو تګ ته ادامه ورکړې وه، خو هغه دوهمه پدې لټه کي وه چې څرنګه تر لومړۍ ښځي مخته سي، او په منډه د هرکيليز مخته ودرېده، او هغه يې داسي مخاطب کړ: «زما ګران هرکيليزه، زه ګومان کوم چې ته پدې شک کي ئې چې په خپل ژوند کي کومه لاره تعقيبه کړې. که چيري ته زما دوست سې او زما لاره تعقيبه کړې، زه به تا پر يوه داسي لاره باندي سيخ کړم چې تر ټولو نورو اسانه او لذت بخښونکې وي، داسي يوه لاره چې ته به د ژوندانه د ټولو خوشحاليو خوند پکي وګورې، او هلته به ستا ژوند له هر راز غم او مشکل څخه خوندي وي. نه به جنګ او نه به هم د دنيا نور امور ستا خيال او ارام خرابوي، هلته به ستا د ټولو غرايزو د پوره کولو اسباب او امکانات برابر وي. تا ته به خوندور خورکونه او شربتونه دررسېږي. ستا مخته به ټول هغه شيان وي چې ستا خوښېږي. ستا پر شاوخوا به تاند او ښکلی بوی را خور وي. ستا په پاسته او ارام پالنګ کي به هر وخت ستا په غېږ کي ښايستې پرتې وي، او هغوی به ستا خوب لا در ښکلی کوي. هلته به دغه ټول عالي شيان پرتله ستا له کومي هڅي ستا په برخه وي.

«که چيري ته ډاربېږي چې دغه برکات او ښېګڼي به يو وخت خلاصېږي او نور به نه وي، او ته به مجبوره سې چې همدا برکات د خپل عقل، زحمت او د جسمي سترېيا په مټ ترلاسه کړې. مګر زه تا ته مخکي له مخکي ډاډ درکوم چې ته به

په ازادانه او وړیا توګه د نورو له زحمت او کار څخه ګټه ترلاسه کوې، او ته به خپله نه زحمت وینې او نه به هم شاقه کارونه کوې، بلکي هر څه چي ته یې میل لرې هغه به ستا د امر سره سم ستا د خوشحالۍ او ارامۍ لپاره برابرېږي.»

«کله چي هرکیلیز لدې ښځي څخه همدا بلنه واورېده، هرکیلیز وغوښتل چي د هغې په نامه پوه سي، او هغې پدې اړه داسي وویل: زما اشنایان او هغه خلګ چي ما ښه پېژني، هغوی ما «خوشحالي» بولي. مګر زما دښمنان او هغه خلګ چي غواړي زما شهرت او نامه ته صدمه ورسوي، هغوی ما ته د «لذت» نوم راکړی دی.»

«په عین حال کي، هغه بله ښځه هم ور نژدې سوه، هغې هرکیلیز داسي مخاطب کړ: هرکیلیزه، زه هم پدې غرض راغلې یمه چي د خپلي مرستي بلنه درکړم. زه ستا په الهي منشا خبره یمه، او هم مي ستا عالي فطرت حتی له ماشومتوب څخه مشاهده کړی دی. له همدې کبله زه هیلمنه یمه که چیري ته زما سره زما کور ته ولاړ سې، تا به یو ستر او نه هېرېدونکی اقدام تر سره کړی وي، او ته به وروسته نور لوي کارونه هم تر سره کړې. او پدې ترتیب به زه د فاني انسانانو په منځ کي لا باعزته او مشهوره سمه. مګر تر دې مخکي چي زه تا ته د خپل ملګرتیا او جماعت دعوت درکړم، زه به ستا سره صادقه او ازاده یمه. او دا حقیقت به همدلته او همدااوس په ډاګه کړم چي په دنیا کي هیڅ داسي باارزښته شی نسته چي پرته له زحمت او کار څخه دي ترلاسه سي. خدایانو د هر واقعي او نجیب لذت لپاره یو قیمت ایښی دی. که چیري تا د لوی خدای مرحمت او کومک وګاټه، ته باید په ډېر دقت سره د هغه عبادت هم وکړې. که چیري ته غواړې چي د خپلو ملګرو محبوب کس واوسې، ته باید هڅه وکړې چي هغوی ته وفاداري وساتې. که چیري کوم ښار تا ونازوي او عزت دي وکړي، ته باید د هغه ښار خدمت هم وکړې، او که چېرته ته غواړې چي د خپل صداقت اوشهامت په وجه د ټول یونان محبوب سې، ته باید کوښښ وکړې چي یونان ته د لوی خدمت مصدر وګرځې. که چیري ته غواړې چي ستا پټی ښه حاصلات درکړي، او ستا غېږ په غنمو در ډکه کړي، ته مجبوره یې چي د خپل پټي ښه غم وخورې. که چیري ته غواړې چي د خپلي رمې په وجه شتمن سې، ته هرومرو باید د هغوی ښه روزنه وکړې. که چیري ته غواړې چي خپله مځکه او سلطه د وسلو په زور پراخه کړې، که چیري غواړي چي خپل اسیر یاران له بنده ازاد کړې، او که چیري ته غواړي چي خپل غلیمان تسلیم ته مجبور کړې، ته مجبوره یې چي نه یوازي هغه خلګ مشخص کړې چي د جنګ په هنر کي ماهران او باتجربه دي، بلکي پخپله هم باید په نظامي امورو کي پوهه او تجربه ولرې. او بالاخره که چیري ته غواړې چي ستا بدن غښتلی وي، ته مجبوره یې چي خپل بدن د خپل دماغ

تابع وګرځوې، او خپل بدن په کار او زحمت اموخته کړې.

«همدلته د لذت ملکې د تقوا د ملکې خبري ور قطع کړې او داسي یې وویل: زما ګران هرکیلیزه، ایا ته پوهېږې چي له څرنګه اوږدو کړاونو او خواریو له تېرولو وروسته به ته ددغي ښخي د خوشحالۍ وعدې ووینې؟ ما تعقیب کړه، او زه به خوشحالۍ ته د رسېدو لنډه او بې تکلیفه لاره در وښیمه.»

د تقوا او فضلیت شهزاده ګۍ چي په تندي کي یې رحم، شفقت، او خلوص برېښېده، په جواب کي داسي وویل، «افسوس، هغه خوشحالي او لذت به څه وي چي پرته له هیڅ کوښښ څخه ترلاسه سي؟ ته به داسي یو کس ته پاته کېږې چي له اشتها پرته باید لذت احساس کړي؛ د اشتها تر مخه به ډوډۍ خوري، او تر تندي مخکي به اوبه څښې. ستا د شوق د ارضأ کولو لپاره به باید داسي عالي هنرمندان موجود وي چي ستا هوس را وپاروي. ته به تاند شرابو ته اړتیا لري چي د لذت احساس وکړې، او د دوبي په ګرمیو کي به د شرابو د یخولو لپاره یخی او واوري ته ضرورت لرې. د خوب لپاره به پوست پالنګ ته، د ناستي لپاره به پاسته کوچونو، او ستا د خاطر د خوشحاله ساتلو لپاره به یو داسي عطر ته اړتیا وي چي تا ښاد وساتي. څرنګه چي تا به هیڅ فزیکي کار نه وي کړي او ته به خوب ته چمتو نه ئې، مګر ته به ددې لپاره کټ ته ځې چي بل هیڅ شی د کولو لپاره نه لرې. همدا راز، د عشق په لذت کي به ستا همدا حالت وي، ځکه ته به خپل تمایلات مجبوره کوې نه دا چي هغوی تقعیبوې؛ او ته به مجبوره ئې چي د خپلو جذباتو او احساس د ژوندي ساتلو لپاره به نه یوازي دا چي د هنرونو کارولو ته اړ سې، بلکي حتی د فطرت رټلو ته به هم مجبور سې. ته به خپل پېروان دېته اړباسې چي شپې په فسق او فجور تېري کړي، او ورځي به نشه او غفلت. هې، فنا کېدونکې موجوده ته به د خدایانو له دایرې څخه وتلې یې، او د ښو خلګو په مینځ به رټل سوې یې. پداسي حالت کي به څوک ستا خبرو ته اهمیت ورکوي؟ څوک به ستا سره په سخت ساعت کي کومک کوي؟ او کوم هوښیار سړی به ستا میلمستیاوو کي برخه اخلي؟ که چیري ته د هغې لاره تعقیب کړې، ته به د هغو خلګو په جمله کي حساب سې چي په ځوانۍ کي له خپل قوت څخه محروم سوي وي، او په زوړوالي کي له عقله. دا ډول خلګ په ځوانۍ کي ګستاخي او عیاش وروزل سوي وي، او بیا په زوړوالي کي په سختۍ او خوارۍ کي ژوند تېروي، او پخپله ماضي باندي شرمېږي. د راتلونکې په باب اندېښمن وي. په ځوانۍ کي په لذت او عیش کي

افراط کوي، اما په زوړوالي کي له راز راز دردونو او مشکلاتو سره مخامخ وي.

«د هغې برعکس زما خبري د خدايانو اسرار دي، او د ښو خلگو ياري ده. زه پر ټولو عالي او ښو شيانو باندي اثررسوخ لرم. ما ته د خدايانو ټول مخلوقات او نيک خلگ احترام لري. زه د هنرمندانو لپاره ښه ملگرې يمه، د کورنيو د مشرانو لپاره يو مطين امنيت يم، د خدمتگارانو او مزدورانو لپاره يوه مهربانه مرستياله يمه، د سولي په هنر کي يوه گټوره همکاره يمه، د جنگ په سخت ساعت کي يوه وفاداره ملگرې دي يمه، او دوستانو په مينځ کي تر ټولو ښه متحد کونکې او راجمع کونکې يمه.

«زما مريدان هم د خورک او څښنگ په ټولو شيانو کي لذت گوري، حتی په هغو شيانو چي د لاسته راوړلو لپاره ئې چندان زحمت نه وي کښلی، او دا ځکه چي هغوی هله دا کارونه کوي چي اشتها ئي احساس کړي. د هغوی خوب تر هغو کسانو ټنده او ارام وي چي تمامه ورځ بېکاره لوی لونډ گرځي. کله چي زما مريدان له خوبه راپاڅېږي، هغوی هيڅکله له خوب او کټ څخه سترې نه ښکاري، نه هم هغوی د خوب لپاره د ژوندانه نور ضروري وظايف خوشي کوي. زما ځوانانو د دې وړيا گټلی دی چي هغه کسان ئې تمجيد او وستايي چي خپله د نورو خلگو لخوا ستايل سوي

وي. هغوی د خپلو تېرو اعمالو په ارتباط خوشحاله وي، او پخپلو اوسني کارونو او مشغولاوو کي راضي او خوښ وي. هغوی، البته زما په ذريعه، پر خدايانو باندي گران دي، د دوستانو په مينځ کي محبوب او مشهور دي، او هېواد ئې کارونه او خدمتونه منلي او ستايلي دي. او کله چي د هغوی وخت پوره سي او اجل ور ورسېږي، هغوی نه هېرېدونکي ستوري سي چي تل ئې انسانان په ښه نامه يادوي او کارنامې ئې خپلو اولادونو ته نقلوي.»

« نو بنا، اې زما گران هرکيليزه، ته چي الهي پښت او نسب لري، ته کولای سې چي د تقوا او زحمت په برکت کامله خوشحالي او ارامي ترلاسه کړي.»

«د پروډيکوس په قول، د هغوی (ملکو او هرکيليز) بحث پر دغو مسايلو باندي وو، زما گران دوسته. ته بايد دا ومنې چي پروډيکوس همدا افکار او خيالونه تر ما څو ځله په ښه او مناسبو کليو او عباراتو کي بيان کړي دي. زما د زړه له کومي غوښتنه دا ده، زما گران اريستيپوسه چي ته هم له دغو الهي هداياتو څخه داسي زده کړه وکړي چي د خپل ژوند په بهير کي داسي انتخاب او کارونه وکړې چي تا تل خوشحاله وساتي او د مستقبل لپاره دي د افتخار توښه سي».

نور بيا ...

ليکوالان: خالد اقبال ياسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثار احمد آريا

## نوبل جايزه وړونکي اديبان

# جوزووا کاردوتچي

Giousue Carducci

۲۷ جولای ۱۸۳۵م زوکړه -۱٦فروري ۱۹۰۷م مړينه)

**(نهمه برخه)**

جوزووا کاردوتچي ته په ۱۹۰٦م کال کي نوبل جايزه ورکړه سوه. نوموړی په شعر کي د فوق العاده بريالیتوبونو له امله د دې جايزې مستحق وګڼل سو. مخکي تر دې چي کاردوتچي ته جايزه ورکړه سي، هغه د يو نامتو عالم او ادبي شخصيت په توګه پېژندل سوی وو. کاردوتچي د ادب تر څنګ په کره کتنه کي هم ښه نوم ګټلی وو. پر دې سربېره نوموړی په سياسي او مذهبي چارو کي هم فعال کس وو. کله چي د کاردوتچي لومړنۍ شعري ټولګي چاپ سوې، نو نوموړی ئې د شهرت مقام ته ورساوه. پر شعر سربېره هغه په نثر کي هم شاوخوا شل ټوکه کتابونه چاپ کړل. په دې آثارو کي کره کتنه، ژوند ليکونه، وېناوي او نوري ليکني شاملي وې. کاردوتچي د سنا غړی هم وټاکل سو او د ژوند تر پايه د يو معقول مشاور په سترګه ورته کتل کېده. دې هر څه ته که وکتل سي، نو نوبل ادبي جايزه د نوموړي پر اوړده بريالي ژوند باندي د فضيلت د سمبوليکي بګړۍ حيثيت لاره.

کاردوتچي خورا بريالی خو له مخالفتونو څخه ډک ژوند تېر کړ. هغه د عيسويت مخالف وو او په دې اړه ئې د (Hymn to Satan)[1] په نامه له جنجالونو څخه ډک نظم هم وکيښ. نوموړي نه

[1] د شيطان ستاينه يا حمد.

يوازي دغه نظم وليكى او په عام محضر كي ئې خلكو ته واوراوه، بلكي په خورا ښه ډول ئې دوهم وار چاپ هم كی. هغه يوازي بې دينه نه وو، بلكي د عيسويت هم سخت ضد وو. نوموړي شيطان لاربنود باله او هغه ئې د تقليد وړ گڼی. شيطان د نوموړي اتل وو او هغه د شيطان پرستی د نوي غورځنگ په سرلارو كي شامل وو.

كه څه هم د نونسمي پيړی د ايټاليا دغه اوسېدونكي دا ښه نه گڼل، چي د شيطان پرست نوم وركړل سي، خو كه څوک د هغه آثار مطالعه كړي، نو همدا نوم به وركړي.

كارډوچي په ۱۸۳۵م كي د ايټاليا په ويرانا (Verana) كي وزېږېد. نوموړی له كوچنيوالي څخه د خپل معالج پلار له سياسي شخصيت څخه اغېزمن وو. هغه په خورا كشرتوب كي لاتيني ژبه زده كړه، ايلياډ (Iliad) ئې په ژور ډول مطالعه كی او د هومر نور آثار ئې ولوستل. همدارنگه نوموړي د نامتو ايټالوي شاعر ژياكومو ليوپارډي (Giacomo Leopardi) آثار هم مطالعه كړل او له هغه څخه متاثره هم سو. د شيطان پرستی په اړه د ليوپارډي څخه نيمگړي پاته سوي نظم (To Ahriman)[۲] پر هغه ځانگړی اغېز وكی. كارډوچي دغه نظم چي د تورتمونو (ظلمونو) شهزاده ته يو دعايه خطاب دئ، د ځان له پاره فلاح وگڼی. د دې دعا تكراري جمله پر نړی د شيطان د واكمنی يادونه كوي.

په پنځه ويشت كلنی كي هغه د (بولونا) پوهنتون د ايټالوي ادب په څانگه كي په تدريس پيل وكی. څلوېښت كاله ئې په همدې اداره كي تېر كړل. په دې دوران كي نوموړي د ايټاليا پر سياسي خوځښتونو ژور نظر درلود او په هغو كي ئې فعاله برخه اخيسته.

په ايټاليا كي د انقلاب وخت وو. د ايټاليا اولسواكي غوښتونكو د فرانسې له انقلاب څخه الهام اخيستی وو. دوی د فرانسې په مرسته د هيپسبرگ (Hapsburg) كورنی د باچا د ليري كولو په مبارزه اخته ول. دوی هڅه كول، چي د جاگيرداری امارتونه او كوچنی، كوچنی پاچهی د ايټاليا په جمهوريت بدل كړي. تر څو كلونو كورني جنگ او سياسي مبارزې وروسته د نونسمي پېړی د اويايمي لسيزي په نيمايي كي د ايټاليا ډېره مځكه د جمهوري ډوله پاچهي نظام تر واک لاندي راغلې وه، خو لا هم پر روم باندي په مستقيم ډول د پاپ سياسي واک چلېدی او د ايټاليا پر پاپايي ايالتونو باندي د پاپ د حكومت واكمني پاته وه. پاپ د دې واک او اختيار د نفاذ له پاره د اسټريا د هيپسبرگ له پاچاهانو څخه نظامي مرسته اخيسته. ښرگنده خبره ده، چي دا كار د اولسواكی غوښتونكو نه خوښېدی. ټوله نونسمه پېړی فري ميسنان (Free masons)[۳] د ايټاليا له

---

[۲] اهريمن ته.

[۳] فري ميسن د يو نړی وال انجمن نوم دئ. دغه انجمن خپل ټول كارونه په پټه سرته رسوي. (فيروز الغات قاموس)

جمهوريانو سره پر څنګ ولاړ ول.
کارډوچي هم د جمهوري پلوو د نورو نومياليو مشرانو په څېر د فري ميسن غورځنګ غړی وو. هغه هم د نورو فري ميسنانو په څېر د خالق د يادوني پر وخت د (کايناتو د لوی نقشه ليکونکي) اصطلاح کاروله. نوموړی ټول ژوند د تعقل او حب الوطنۍ په نشه کي ډوب وو. په ۱۸۵۱م کي د هغه پلار يو ځل بيا کاتوليکزم ته رجوع وکړه، خو ډېر ژر ئې بيرته پښېماني څرګنده کړه او خلوت ته ولوېد. کارډوچي اړ سو، چي په دې مهال کي پر کوچنيو، کوچنيو دندو کار وکړي، خو بيا هم هغه ډېر زيار کښ شخص وو.

د کارډوچي کره کتني دونده ترخې وې، چي د هغه مخالفينو به بې دريغه ښکنځل ورته کول. په ۱۸۶۰م کي د بې باکه سياسي نظرياتو له امله په موقت ډول له دندي ګوښه کړل سو. نوموړي ټول ژوند شيطان ته د يو بدو موجود پر ځای د پرمختګ د سمبول په سترګه کتل: که څه هم د هغه سياسي افکارو وخت پر وخت تغير کاوه، خو په هيڅ وخت او هيڅ حال کي ئې له منځلارۍ څخه کار وا نه خيست. د پاچاهي نظام پر وخت د پاچا سر سخته مخالف وو، خو وروسته بيا پاچا پلوی سو. په ۱۸۹۰م کي هغه د سنا مجلس غړی وټاکل سو او تر مرګه پر دې دنده پاته سو.

کارډوچي په خپله شاعرۍ کي په وار، وار خپلي ابايي مېني ته رجوع کوي او د دې سيمي پر اوسني او تېر وضعيت باندي نظر ساتي. نوموړي ټول ژوند د يونانيانو او روميانو له پخواني تهذيب سره علاقمندي ښوولە. هغه د روم د قديمو خدايانو څو قصيدې وليکلې. دغه قصيدې په نړيواله کچه مشهوري سوې. نوموړی په دې عقيده وو، چي عيسويت هغه دين دئ، چي زموږ د پخوانۍ زمانې خوشحاله او نېکمرغه ژوند او کلتور له منځه وړي. نوموړی د نونسمي پېړۍ د نورو منورينو لکه بودليئر (Baudelair)، ليو پارډي (Leopardi)، ليوي (Levi) او رمباد (Rimbaud) په څېر نه وو، چي مسيحي خدای ته په ګونډو سول او د بخښني د فقر په حال کي مړه سول بلکي هغه د ژوند تر پايه د مذهبي ارزښتونو خلاف وو او په همدې عقيده کي مړ سو.

کارډوچي د شيطان په ستاينه کي يو نظم وليکی. دغه نظم (۵۰) بندونه لري. هر بند ئې دوې، دوې مسرۍ دئ. د هر بند دوهمه او څلرمه مسرۍ مردفه ده. د دغه بحر په انتخاب سره نظم داسي موزون آهنګ ورکوي، لکه د پخوانۍ رېل ګاډۍ د ماشين (Stem Engine) څخه چي د تېز تګ پر مهال پورته کېږي. دغه نظم په ۱۸۶۹م کي په دوهم وار د بولونا[۴] د مترقيانو په اخبار کي چاپ سو. يادسوی نظم د وخت له شرايطو سره خورا سم وو، ځکه په دې وخت کي جمهوري پلوه سياسيون د نظامي او سياسي لاروڅخه په دې هڅه کي ول، چي د پاپانو له آمريتونو څخه د ويټي کن د حکومت لاسونه ايسته کړي. کارډوچي د

---
[۴] د ايټاليا د يو ايالت د ښار نوم دئ.

دغه نظم د بیا چاپ له امله د نورو مخالفتونو سره هم مخ سو. حتیٰ د هغه د ژوند ځینو داسي ملګرو هم لاس ورڅخه واخیست، چي د پاپانو په مخالفت کي ورسره ولاړ ول. دغو کسانو د پاپانو مخالفت کاوه، خو د شیطان انډیوالي ته ئې ځان نه سوای ټینګولای. اکثر منځلاري کره کتونکي په دې باور ول، چي دا ډول بې ادبي او سپکاوی د اولسواکي غوښتونکو په تاوان ده، ځکه په دې ډول دوی په اولس کي خپل محبوبیت له لاسه ورکوي. په هر صورت، په ۱۸۷۰م کي د روم حکومت د اسټریا د هیپسبرګ کورنۍ پر نظامي ملاتړ سربېره ماته وخوړه او جمهوري پلوه ډلي روم ته ننوتې. هغوی په سیمه کي د متو په زور د پاپ د حکومت واک پای ته ورساوه. د ویټي کن حکومت د کارډوتچي پورتنی نظم له چاپ څخه وروسته بیرته ټول کی. که دا کار نه وای سوی، نو ښايي ویټي کن ته د ورننوتو پر مهال د ډېرو فاتحینو په ذهن کي انګازه کېدلای. په دې نظم کي شیطان د پاپانو د واک په وړاندي د مزاحمت د سمبول په توګه ښوول سوی وو. د ویټي کن حکومت له موقع څخه په استفادې سره انقلابیان د شیطان استازي وبلل، همدارنګه د ۱۹۱۰م په کاتولیک دایرة المعارف کي ټولو فري میسنانو ته همدا لقب ورکړل سو.

د شیطان په ستاینه کي د لیکل سوي نظم سیاسي اغېزه چي هر څه وه هغه جلا خبره ده، خو ځیني پوهان او کره کتونکي دغه نظم ډېر هنري نه ګڼي. فاضل کره کتونکي جان بیلي (John Baily) د کارډوتچي پر آثارو د تبصرې پر مهال وویل: "د کارډوتچي شیطان په خپل اصل کي استدلال او فطرت دئ، وجود او ذهن دئ او هر هغه شی دئ، چي د رهبانیت په وړاندي بغاوت کوي او د هر هغه شي په وړاندي بغاوت کوي، چي د عیسویت استازی بلل کېږي. که چیري څوک دغه نظم ته د شعر د هنر له اړخه وګوري، نو دا یو داسي اثر دئ، چي برجستګي، قوت او پر ژبه تسلط پکښې لیدل کېږي. البته که چیري شعریت ورڅخه و ایستل سي، نو دا نظم به له یو احساساتي خبر څخه ډېر اضافه نه سي". د نوبل جایزې د ورکړې کمېټې هم دا منلې ده، چي د نوموړي آثار د فکري اړخ پر ځای له هنري عظمت څخه برخمن دي.



(٦)

# د کابل پیغله

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

### سور پاکټ

ارشد او اشرف د خپلو پوځیانو سره د جبل سراج څخه د کوهدامن وادي ته ورسېدل. دا ځل هغوی په ټولو هغو کلیو او باندېو کي چي د کوهدان سره مېښتي ول، په غلو پسې وګرځېدل. هر ځای به ئې دوه ـ دوه یا څلور ـ څلور سپاره پوځیان مستقر کول. تر هرو دوو میلو وروسته به ئې دوه سپاره پوځیان هم پرېښوول. د ارشد د دې کړني او تاکتیک له امله غله په خپلو ځایونو کي بند او محصور پاته سول. هغوی نه سوای کولای چي لاري ونیسي او خلک وشکوي. نو ځکه غرو ته وختل. ارشد هم د اوسېدونکو سیمو او کلیو څخه راووت او هغوی ئې تعقیب کړل. تر هر څه مخکي دوی هغه ځای ته ورغلل چي حُسن جهانه او سِتاره ئې د غلو له ناولو منګولو څخه خلاصي کړي وې. خو هلته هم هیڅوک نه

ول. له هغه ځايه بيرته راوګرځېدل او يو لوړ غره ته وختل او هلته ئې د اوسېدو ترتيبات ونيول. وروسته له دې ځايه د غلو په نيولو پسې راوخوځېدل.

ټوله ورځ به دوري هوري ګرځېدل او ماښام به بيرته همدغه اډې ته راستنېدل. په دې ډول څو ورځې سرګردانه او لالهانده ورپسې وګرځېدل، خو غله ئې هيڅ پيدا نه کړل. که څه هم غله ډېر پرېشانه او نا آرامه سول خو د دې پرېشانۍ له امله خلک ورځخه بېغمه او لارې هم امن سوې. د هغې ورځې راهيسې چې ارشد کوهدامن ته راغلی وو، په ټوله سيمه کې هيڅ غلا نه وه سوې او نه هم څوک لوټ سوي ول. نو داسي معلومېده لکه غله چې کومې بلې خوا ته تللي وي.

ارشد به ټوله ورځ خپل تلاښ ته دوام ورکاوه، خو کله چې به ماښام بيرته خپلې اډې ته راغی نو په بستر کې به ئې د شاپيرۍ غوندې ښکلې حُسن جهانې څېره مخی ته دوري هوري کېدله او لېټ پر لېټ به اوښتی. سهار به له وخته راوپاڅېد او وختي به لا د غلو په موندلو او نيولو پسې روان سو. دا د ده يو معمول وګرځېد او هره ورځ او شپه به ئې په همدې ترتيب تېروله.

اشرف هم د ارشد سره يو ځای اوسېدی. هغه د سيوري غوندې د ده ملګری وو. هغه ليدل چې انډيوال ئې د شپې ډېر بېقراره وي. د هغه پر دې حال به ډېر پريشانه وو. نو ځکه به ئې هغه پوه کاوه، لاکن هغه زړه چې د ميني او عشق له څپو ډک سي بيا نو د هغه پوهول او متوجه کول څه ګټه نه لري. څو څو واره به ئې ارشده، ارشده ورته ووايه څو چې چپ به سو.

ارشد سره له دې چې د ميني او محبت په اور کې سوځېدی، د بيلتون درد او سوز به نور هم کباباوه، لاکن د دې هر څه سره سره به ئې خپل مسئوليتونه او فرايض په ډېره توندۍ او قربانۍ سره ادا کول. ده به د ورځې خپل مأموريت پر مخ وړی خو د شپې به ئې د حسن جهانۍ ياد او محبت تازه ساتی.

د حيرانتيا او تعجب ځای خو دا وو چې ارشد څنګه داسي متحمل او توانمند وو چې په ټوله شپه او ورځ کې ئې تر څلورو ساعتو زيات خوب نه درلود، ټوله ورځ او ټوله شپه به نا ارامه وو، په خوړلو او څښلو کې ئې هيڅ ری نه واهه.... هغه څنګه داسي روغ رمټ حتی ژوندی پاته وو او څنګه ئې له مشقته ډک دغه مأموريت په ډېر جديت سره مخته وړی.

که اشرف ورسره ملګری نه وای، او دی ئې نه متوجه کولای، نو ښايي ارشد لېونی سوی وای.

د کنډک ټول سپاره پوځيان د هري ورځې د ډېر يون او لټون له امله خورا ستړي ول. که به څو دقيقې بېغمه او آرام سول نو دا به ئې ډېر لوی غنيمت وګاڼه او زياته ګټه به ئې ترې اخيسته.

يوه اونۍ پوره سوه چې ارشد په غلو پسې دوري هوري ګرځېدی چې په دې دومره موده کې نه غله په لاس ورغلل او نه ورسره مخامخ سول او نه هم دا ور معلومه سوه چې هغوی به چيري وي. خو د دې هر څه سره سره دغه زمری غوندی زړه ور انسان هيڅ بې حوصلې او نهيلی نه سو بلکې پرله پسې د هغوی په نيولو

پسي دوري هوري ګرځېدی.

په دې ترځ کي يوه ورځ ارشد او اشرف د مازيګر پر مهال د خپل کنډک د سپرو سره يو څه مخته وتلي ول او کرار کرار روان ول چي ارشد ورته وويل: د دغو خدای وهلو غلو هيڅ پته او اډه معلومه نه سوه، خدای خبر هغوی چيري تللي دي.

اشرف ورته وويل: زما په ګومان هغوی ښايي د جلال آباد خوا ته تللي وي. که په دې سيمه کي وای، نو حتماً به ورسره مخامخ سوي وای.

ارشد وويل: که هغوی جلال آباد يا کوم بل لور ته تللي وای نو ضرور به د هغې خوا د لوټولو او شکولو خبرونه رارسېدلي وای. نو زما په خيال هغوی همدلته يو ځای پټ دي.

اشرف: موږ خو د دې وادۍ يوه يوه لوښت ولټوله، که همدلته وای هرومرو به ئې څرک لګېدلی وای.

ارشد: دا غله بالکل د ګيدړو غوندي دي، کله چي زور او فشار پر راسي نو فوراً په خپل پټنځي کي ننوزي او کله چي فشار پای ته ورسېږي نو بېرته د غارو څخه راوزي.

اشرف: خو موږ به څونه موده لا په هغوی پسي دوري هوري سرګردانه ګرځو؟

ارشد: دا کار به تر هغه مهاله جاري وي څو چي د حکومت له خوا کوم امر راته کېږي.

اشرف: امر به څوک راکوي؟ ځکه چي اعليحضرت امير امان الله خان او علياحضرتي ملکي خو اروپا ته تشريف وړی دئ، نايب السلطنه سردار ولی محمد خان دئ. د قصر څخه د هغه راوتل داسي دي لکه په لويو پوځي عملياتو پسي چي ځي. که رښتيا درته ووايم هغه نه سم دماغ لري، نه خاص تدبير لري او نه هم کومه ستاره او اثر يا دبدبه لري. حقيقت دا دئ چي بچۀ سقاو د ده د غفلت له امله داسي لوټوني او شکوني کوي. همدا بچۀ سقاو د امير امان الله خان د شتون پر مهال غلی ناست وو. خو دا معلومه نه ده چي اعليحضرت ولي اروپا ته تشريف يووړ او هدف ئې څه دئ.

ارشد: دا د ليده کاته له پاره دي ځکه هغه شپه او ورځ د افغانستان د ترقۍ په فکر کي دئ. هغه به په دې سفر کي پرمختللي هيوادونه وګوري او معلومه به کړي چي هغوی دا ترقي څنګه حاصله کړې ده، په کومو ذريعو او طريقو سره افغانستان ترقي کولای سي او څنګه د دغو ملکونو په قطار کي دربدلای سي.

اشرف غوښته چي يو څه ووايي چي نابېره ئې آس وششنېدی او وغورځېدی. هغه د آس کيزه ټينګه ونيوله او د هغه د کنټرولولو په حال کي ئې شاوخوا وکتل چي څه قصه ده. د ده چپه خوا ته يو څه ليري يو ستومانه او زهير افغان را روان وو چي کالي ئې هم څيري او شکېدلي ول. کرتۍ ئې هم رښکۍ رښکۍ سوې وه. د صدرۍ استر ئې لا څيري سوی وو او له ورايه معلومېدی. جامې ئې ډيري خيرني او شوږېدلي وې. وضع ئې ډيره خرابه او حالت ئې ډير بېخونده وو. په عمر څه نا څه څلويښت کلن معلومېدی خو له

حده وتلی ډنګر سوی وو. ږيره ئې شناوې او د سر ورېښتان ئې هم نسبتاً سپين ول.
کله چي هغه نږدې راغی نو ارشد ته ئې سلام وکړ. ارشد وعليکم ورته ووايه او په عين حال کي ئې ورڅخه وپوښتل چي اکا! له کومه ځايه راځې؟
ستومانه مسافر لږ دمه وکړه او ځای پر ځای ودرېدی. ارشد او اشرف هم خپل آسونه ودرول. مسافر وروسته داسي ځواب ورکړ: زه د هغه مخامخ لوړ غره څخه راځم.
ارشد: ته چيری اوسېږې؟
مسافر: زه په ډکه کي اوسېږم.
ارشد: نو دلته څنګه راغلی يې؟
مسافر: د کار او غريبۍ له پاره راغلی يم.
ارشد حيران سو او داسي ئې وپوښتل: دلته په دې غره او دغه غرنۍ وادي کي ستا له پاره څه کار مهيا دئ؟
مسافر: زه بچهٔ سقاو راغوښتی يم.
د ارشد حيراني او تعجب نور هم ډېر سو او ورڅخه وئې پوښتل چي هغه ولي راغوښتی يې؟
مسافر: زه څه موده مخکي برلين ته تللی وم او هلته مي د باردو جوړول زده کړي ول. هغه دلته په ما باندي بارود جوړول.
ارشد خورا ډېر حيران او پرېشان سو او سترګي ئې رډې راوختې. بيا ئې داسي وويل: دا عجيبه ده چي يو غل د بارود جوړولو فابريکه تأسيسوي.
مسافر: هغه نه يوازي غل دئ بلکي په اوسېدنځای کي ئې د مولويانو او پيرانو جم و جوش هم دئ. هغوی ټوله د حکومت پر خلاف يوه نقشه او دسيسه جوړوي.
ارشد: آيا تا په خپلو سترګو مولويان او پيران ليدلي دي؟
مسافر: هو، همدا اوس هم هلته لس ـ پنځلس ملايان راټول سوي دي.
ارشد: دا صحيح ده، له کوم وخت راهيسي چي اعليحضرت غازي امان الله خان پر دغو مفت خورو پيرانو، ملايانو او مولويانو باندي معاش بند کړی دئ، له هغه راهيسي دوی ټوله د اعليحضرت پر خلاف درېدلي دي. خدای دي دغه ملايان پوه کړي او الله دي هدايت ورته وکړي. دا هغسي خلک دي چي د پيسو له پاره آن خپل دين هم بدلوي. ښه، دا راته ووايه چي تا په خپله د بچهٔ سقاو سره ليدلي او کتلي دي؟
مسافر: هو، هغه ما ته د بارود جوړولو په فابريکه کي د کار وړانديز وکړ خو ما و نه مانه.
ارشد: ولي دي و نه مانه؟
مسافر: زه که څه هم ډېر غريب يم، لاس مي تنګ دئ او په ډېر مشکل سره ژوند مخته بيايم، آن دا چي اکثراً د ورځي صرف يو وار ډوډۍ رارسېږي. بچهٔ سقاو د مياشتي يو نيم سل روپۍ معاش راته وټاکی، خو زما په زړه کي د غازي امير امان الله خان مينه او درناوی ځای لري، زه اعليحضرت د افغانستان آزادونکی بولم. د هغه يا د هغه د حکومت پر خلاف يوه کلمه ويل يا يو ګام اخيستل، يا په کومه توطيه کي برخه لرل د هيواد او ملت سره

خیانت بولم. نو ځکه مي له دې کاره په کلکه انکار وکړ. زما په دې فیصله سره بچهٔ سقاو ډېر پرېشانه او ناآرامه سو. نو ځکه ئې بندي کړم. خو تصادفاً نن یوه ښه موقع په لاس راغله او راوتښتېدم.

ارشد: آفرین! په رښتیا چي د افغانستان حقیقي اولاد یې. خو یوه خبره راته وکه: ته چي بچهٔ سقاو غل بولې، نو هغه ته ولي ورغلی وې؟

مسافر: زه د یو پیر مُرید یم. زما پیر له ځانه سره دلته راوستلی وم.

ارشد: ستا نوم څه دئ؟

مسافر: زما نوم عثمان دئ.

ارشد: عثمان وروره! زه به تا د ځان سره کابل ته بوزم او هلته به ښه وظیفه درکړم، لطفاً راته ووایه چي د بچهٔ سقاو ځای چیري دئ؟

عثمان: هغه تا ته ډېر نږدې اوسیږي.

ارشد: ښایي د دې غره تر شا به وي؟

عثمان: هو همالته دئ.

ارشد: همدا اوس به د هغه سره څو کسان موجود وي؟

عثمان: تقریباً درې سوه وسله وال غله ورسره مل دي.

ارشد: زموږ سره فقط دوه نیم سوه سپاره پوځیان دي. خو هیڅ پروا نه کوي، خدای به زموږ مل او ملګری وي. عثمان وروره! آیا تا ته زموږ استوګنځی درمعلوم دئ؟

عثمان: یا، نه دئ را معلوم.

ارشد: زه به یو سپور پوځي درسره ملګری کړم او هغه به دې هلته ورسوي.

عثمان: ستا څخه ډېره مننه، خو زه ستاسو سره ملګر تیا غواړم.

ارشد: ډېر ښه، چي داسي ده نو دغه توفنګچه واخله او لطفاً لاره راوښیه.

عثمان هم توفنګچه واخیستله او مخکي روان سو. ارشد او ټول پوځیان تر شا ورپسي روان سول. څه ګړی وروسته د غره چپه خوا ته وګرځېدل چي یوه نسبتاً اوږده دره وه. عثمان د دې درې په ننوتوځي کي ودرېد او وئې ویل چي دا دره پنځوس متره اوږده ده. تر هغه وروسته یو ارت میدان رارسېږي چي غله ټول همالته اوسیږي.

ارشد: آیا دغه میدان ته د ننوتلو همدا یوه لاره ده که بله لاره هم لري؟

عثمان: ما بله کومه لاره نه ده لیدلې.

ارشد: خیر، پروا نه کوي، اوس ته لطفاً تر شا راځه، ځکه چي ته پلی او بې وسلې یې.

عثمان: نه، زما مشره، زه ستاسو تر څنګ درسره ولاړ یم.

ارشد: ښه دئ، اې زړه ور او هیواد پال شخصه! راځه زما تر څنګ راسره ملګری سه.

ارشد خپل آس درې ته داخل کړ او نور ټول پوځیان تر شا پسي روان سول.

دوی ټوله په کراری او هوښیاری سره په دره کي مخته تلل. کله چي د درې پای ته نږدې سول نو پنځه وسله وال غله ئې ولیدل. هغوی چي ارشد او نور پوځیان ولیدل نو ژر ئې خپل توپکونه راواړول او هر یوه کارتوس ورتېر کړل. په دې شېبه کي یو غله په لوړ ږغ سره شپیلاق وکړ خو ارشد په زړه ورتوب سره مخته ورتی او توپک ئې ورته ونیوی او ټک ئې پر

وکی. عثمان هم د توفنګچي ډز پر وکړ او غلو هم متقابلاً ټکان وکړل. په دره کي یو دم د ټکانو آزانګې خپرې سوې او هري خوا ته داسي لوګي او دودان راپورته سول تا به ویل چلم څکول کېږي. ارشد د دې دودانو څخه په ګټه اخیستنه سره د خپل آس کیزه راکش کړه او د سترګو په رپ کي نور هم مخته ورغی. یو غله چي ولیدی ټک ئې پر وکړ لاکن خطا سو او ارشد خان ور ورساوه. د ده تر شا اشرف او نور پوځیان هم راورسېدل. پیره دار غل وارخطا سو او وتښتېد.

عثمان د هوسۍ غوندي د سپرو پوځیانو تر څنګ مخته ځغستل او شاوخوا ئې په غلو پسي کتل او توفنګچه ئې چلول. د تښتېدونکو غلو څخه دوه کسان وویشتل سول او ولوېدل. ارشد هري خوا ته ژر ژر کتل او شاوخوا ئې غله لیدل چي دوري هوري ځغلي یا ځانونه وسله وال کوي. د دغو غلو سره یو شمېر ملایان، مولویان او پیران هم ملګري ول چي اوږدې چپني ئې اغوستي وې. ټولو اوږدې ږیري لرلې او لاسونه ئې پر تېرول.

ارشد د درې پر یوه خوا خپل پوځیان د جنګ په حال کي موضع بندي کړل. هلته مخامخ غله هم د وسلو سره خزه سول. ملایان او پیران غارو ته ننوتل او پټ سول. بچهٔ سقاو د یوې لویي ګاري شا ته ودرېد او په لوړ ږغ ئې داسي وویل: «ارشده! ولی خپل ژوند چتي له لاسه ورکوې. ته یو زړه ور انسان یې او زه دي منم. که ته د هغه امان الله خان چي په اروپا کي مرتد سوی دئ، او هلته ئې خپله مېرمن یا د افغانستان ملکه د عیسوي ښځو غوندي بې ستره (بې پردې) کړې ده، طرفداري پرېږدې او زما تر څنګ ودرېږې نو زه به تا د خپلو پوځیانو لوی درستیز کړم».

ارشد سخت وخښمېد او داسي ئې ورته وویل: «زه حیران یم چي یو غل څنګه خپل معظم پاچا مرتد بولي».

بچهٔ سقاو: دا زه نه وایم، نه هم زه د داسي فتوا جرأت کوم، بلکي زما سره موجود ملایان او پیران دغه فتوا ورکوي.

ارشد: هغوی درواغجنان دي، د پیسو وږي دي، هغوی ته په دنیا کي د پیسو څخه پرته بل هیڅ شی هم خوند نه ورکوي. حکومت هغوی خلع او برطرف کړي دي. نو ځکه اوس په اعلیحضرت پسي پروپاګند کوي. ته خو حبیب الله نومېږې، که د لاري شکوَنو او لوټماری څخه توبه وکړې نو زه به په اعلیحضرت باندی ستا ټول جرمونه معاف کړم.

بچهٔ سقاو: ډېر ښه، لږ صبر وکړه چی زه مشوره وکړم.

بچهٔ سقاو ولاړ. دا مهال لمر هم کرار کرار د لوېدو په حال کي وو. د لمر زریني وړانګې د لوړو غرو پر څوکو سوکه سوکه لږېدې او ډوبېدې. ټولو غلو او پوځیانو یو بل ته مخامخ مورچې نیولي وې. څو دقیقې وروسته بچهٔ سقاو بیرته راغی او داسي ئې وویل: «ارشده! کومه خبره چي تا وکړه پر هغه باید غور وسي. نو ښه دا ده چي نن ویني و نه بهېږي. نن شپه ښه فکر وکړه. سبا سهار به یا جنګ کېږي او یا به سوله برقرارېږي».

ارشد: ښه دئ، زما هم همداسي خوښه

ده.

بچهٔ سقاو: ته نن زموږ میلمه یې. هر څه چي تیار وي د یار وي، په ګډه به ئې سره وخورو.

ارشد: زه ستا څخه مننه کوم. زموږ سره ډېر خواړه موجود دي. تر کله چي ته یو غل بلل کیږې نو موږ به ستا میلمستیا و نه منو.

بچهٔ سقاو: که زه توبه وکړم نو بیا؟

ارشد: که داسي وکړې نو بیا به موږ او تاسي ورونه یو او ستاسو په دعوت کي به برخمن سو.

بچهٔ سقاو: ښه، د دې فیصله به سبا وسیي. آیا ته دا قبلوې چي نن به پر موږ نابېره حمله نه کوې؟

ارشد: که ته هم همداسي کوې نو زه هم پر خپله خبره ټینګ درېږم.

بچهٔ سقاو: زه قول کوم چي نن به پر تاسو هیڅ ډول حمله نه کیږي.

ارشد: زه هم همدا ژمنه کوم.

بچهٔ سقاو: اوس خو د یوې شپې له پاره زموږ او ستاسي تر منځ سوله برقراره سوه، نو خپلو پوځیانو تهووایه چي زما او ستا د شپې ناستي له پاره ترتیبات ونیسي. زه غواړم ستا سره یو څو خبري وکړم.

ارشد هم خپلو پوځیانو ته د تللو امر وکړ او ورته ویې ویل چي د ناستي له پاره مناسب ځای ولټوي. د ده سپاره ټول د آسونو څخه راکښته سول او د غارونو په پاکولو ئې شروع وکړه. غله هم ټول پر شا سول. بچهٔ سقاو ورڅخه وپوښتل چي آیا زه در تللای سم؟

ارشد: هو بې له کومي ببري څخه راځه!

زه به پر تا هیڅ ډول تېری و نه کړم، ډاډه اوسه.

بچهٔ سقاو هم د مورچل څخه راووت او د ارشد خوا ته راغی. په رارسېدو ئې وویل: «ما چي کوم ژوند راپیل کړی دئ، هغه له مصیبته ډک دئ. له کله راهیسي چي زه غل سوی یم، یوه ورځ مي هم پر آرامه او بېغمۍ نه ده تېره کړې. زه د دې ژوند څخه ډېر ستړی سوی یم. زه غواړم چي حکومت مي معاف کړي...

ارشد ئې خبره غوڅه کړه او ورته ویې ویل چي زه دا اقرار کوم چي حکومت به ستا ګناه معافوي او پر خپله دنده به دي بېرته ګوماري.

بچهٔ سقاو: زه د یو پیر مُرید یم، زما پیر همدا اوس راسره موجود دئ، ما د هغه سره مشوره کړې وه، هغه د دې کار سخت مخالف دئ چي زه د حکومت څخه معافي وغواړم.

ارشد: دغسي پیران او ملایان د هیواد ورانول غواړي، د دغو احمقانو خبره مه منه.

د بچهٔ سقاو په څېره کي د قهر او غوصې علایم راښکاره سول او داسي ئې وویل: تاسو لطفاً زما د پیر د شان او منزلت په وړاندي بې ادبي مه کوئ. زه هر ډول خبره زغملای سم خو د خپل پیر د مقام او منزلت پر ضد هیڅ ډول ګستاخي نه سم زغملای.

ارشد: زه افسوس کوم چي زما الفاظو ستا احساسات راوپارول.

بچهٔ سقاو: ګوره! همدا اوس زما سره لس مولوي صاحبان او تقریباً پنځلس پیران موجود دي. هغوی د یوسف زیو، اڅکزیو، مهمندو، اپرېدیو، وزیرو، مسعودو، غلجیو، خوږیانیو او نورو قومونو او قبایلو پیران او

ملایان دي. هغوی صرف د دې له پاره ما ته راغلي دي چې زه خپل قوت منظم کړم، د پاڅون امر اعلان کړم او پاچهي ونیسم. هغوی شریف انسانان دا اعتراف کوي چې هر یو به د خپل قوم له خوا زما سره مرسته کوي او ما به د افغانستان پاچا کوي. خو زما زړه نه غواړي، او زه دا خبره اعلانوم چې اعلیحضرت امیر امان الله خان د خپل اولس او خپل وطن یو سربښندونکی واکمن دئ، د هغه پر ضد ښورښ یو احمقانه عمل دئ.

ارشد چې د بچهٔ سقاو دا خبرې واورېدې نو سخت حیران سو. هغه تر دې دمه دی یوازې داسې غل باله چې خلک ورځخه ناخوښه ول، خو د دغو خبرو اترو ځخه ئې داسې معلومه سوه چې د امیر امان الله خان پر ضد یوه منظمه نقشه او دسیسه روانه ده. د عامو افغانانو او باسواده ملایانو او پیرانو له خوا د هغوی پر دغسې ذهنیت باندې سخت پرېشانه او محزون سو. نو هغه ته ئې داسې وویل: «ته ښه فکر وکړه او متوجه سه، د ځان او هیواد ښه او بد پخپله وسنجوه. نن نن برتانیه او روسیه دواړه د افغانستان ترقۍ ته حیران تللي دي. نن د کورنۍ جګړې وخت نه دئ بلکې د اولس او هیواد خدمت ستر اهمیت لري. که موږ ټوله یو موټي سو او هڅه وکړو، نو هیواد به مو په مترقي او پرمختللو هیوادو کې ودرېږي».

بچهٔ سقاو: زه هم همداسې فکر لرم، خو زما په زړه کې دا ښېره را اچول کېږي چې حکومت به هیڅکله هم ما معاف نه کړي او هر وخت که زه د حکومتي کسانو په لاس ورغلم نو بې له ځنډه به مې اعدام کړي.

ارشد: دغسې کار تر هغه مهاله امکان نه لري تر څو ارشد ژوندی وي.

بچهٔ سقاو: ښه چې داسې ده، نو زه به نن پر همدې خبره او ډاډ باندې غور وکړم.

ارشد: هو غور پر وکړه، ښه فکر ورته وکړه، او نور نو د هیواد خدمت ته ملا وتړه.

بچهٔ سقاو: ښه، فعلاً د خدای په امان.

بچهٔ سقاو ارشد ته غېږه ورکړه او رخصت سو. ارشد هم خپلو ملګرو ته راغی. هغوی څو غارونه پاک کړي او په وښو ئې فرش کړي ول. وروسته ئې د ډوډۍ انتظام وکړ. کله چې ډوډۍ تیاره سوه نو ټولو وخوړله او بیا ئې د ماخستن لمونځ ادا کړ او غارو ته ننوتل او بیده سول. د احتیاط له پاره ئې څو سپاره پوځیان شاوخوا پیره ودرول.

کله چې سهار سو، ټوله راویښ سول او لمونځونه ئې ادا کړل او بیا ئې ځانونه وسله وال کړل. کله چې لږ ګړی وروسته لمر راوختی نو بچهٔ سقاو د یوې لویې ګارې شا ته راغی او په لوړ آواز ئې داسې وویل:

ارشده! زه پر تا باندې اعتماد لرم، خو پر حکومت باندې اعتبار نه لرم، نو ځکه ستا اطاعت نه سم قبلولای.

ارشد ډېر تأسف وکړ او داسې ئې ورته وویل: آیا دا ستا وروستی فیصله ده؟

بچهٔ سقاو: هو، دا مې آخري پرېکړه ده.

ارشد: ښه، نو معلومه سوه چې زموږ او ستاسې سوله هم ماته سوه او پای ته ورسېده.

بچهٔ سقاو: هو همداسې ده.

ټوله غله د خپلو وسلو سره په موضع ګانو

کي ځای پر ځای سوي ول. ارشد هم خپل پوځیان تیارسی کړل. څو ثانیې وروسته دواړو خواوو یو پر بل ډزي پیل کړې. جنګ ومښت او د مرمیو باران پیل سو.

ارشد خپلو ملګرو او پوځیانو ته جرأت ورکاوه او پر مخ ئې د ورتګ قومانده ورکوله. هلته بچهٔ سقاو هم خپل غله پر جوش راوستل. دواړو خواوو د احساساتو او قهر په څپو کي توپکونه یو پر بل چلول. هغه ملایان او پیران چي بچهٔ سقاو ته راغلي ول، له بیري په غارونو کي پټ سوي ول. ارشد او پوځیانو ئې پر غلو وار په وار فشار راوړی او هغوی هم کرار کرار پر شا تلل او غارو ته ننوتل.

لمر د آسمان سر ته را رسېدلی وو او هره خوا ئې شعاعوي خپرې وې. ارشد او ملګري ئې پر سپین میدان باندي جنګېدل، خو غله په غارو ننوتل. بچهٔ سقاو هم په یو ارت غار کي ولاړ وو او ګولی ئې اورولې. د دواړو خواوو څخه د ګولیو مسلسل ږغونه اورېدل کېدل او داسي ښکارېده چي ارشد به غله ووژني او یا به ئې ونیسي او ورسره روان به ئې کړي. خو دا مهال نابېره یو کس راورسېد چي پر آس سپور وو. هغه راساً ارشد ته راغی او ارشد ته ئې سلام وکړ او بیا ئې یو سور پاکټ ورکړ. ارشد هم پاکټ خلاص کړ او په لوستلو ئې پیل وکړ. د خط په لوستلو سره د ده څېره وار په وار زمولېده او طبعه ئې خرابېده. کله چي ئې ټول خط ولوست نو سوړ اسوېلی ئې وکیښ او داسي ئې وویل: «افسوس، ناکامي!»

اشرف نږدې ولاړ وو، او وئې پوښتل چي څه خبره ده؟

ارشد دغه خط ورکړ او داسي ئې ورته وویل: ته ئې په خپله ولوله.

اشرف هم خط واخیست او په لوستلو ئې پیل وکړ چي داسي پکښې لیکلي ول:

«د کابل څخه، د نایب السلطنة اعلیحضرت سردار ولي محمد خان په امر د دې لیک له مخي ارشد ته حُکم صادرېږي چي د بچهٔ سقاو تعقیب پرېږدي او نه هم پر هغه باید تعرض وسي. فوراً پر شا ولاړ سئ. که د دغه امر تر رسېدو وروسته آن یوه مرمی هم فیر کړې یا د بچهٔ سقاو د تعقیب له پاره یو ګام هم واخلې نو ځواب ویونکی به یې او ستا دغسي عمل به د امر څخه سرغړونه وي.

د شور باز د ملا په قلم»

اشرف وویل: دا خو د ډیري حیرانۍ خبره ده. په دغه راز هیڅ نه پوهېږم. اوس ته څه اراده لرې؟

ارشد: مجبوراً باید همدا امر ومنو.

اشرف: که دغه امر یو ساعت وروسته راَرسېدلی وای، نو بچهٔ سقاو به مو نیولی وای.

ارشد: بېشکه همداسي ده. ښه، اوس خپلو پوځیانو ته د پرشا کېدو قومانده ورکړه.

اشرف هم پوځیانو ته د پرشا کېدو قومانده صادره کړه، ټول سپاره پوځیان پر شا راغلل او ګرده بیرته روان سول.

غلو د هغوی شاتګ ته حیران حیران کتل.

نور بیا ...

استاد محمدمعصوم هوتک / کاناډا

# د حاجي محمدآصف جان "پاس يوسفي" په ياد



همدا اوس (۱۴مه د اګسټ ۲۰۱۴ع د ماځيګر څلور بجې) په روهي ويبپاڼه کي د يوه خپاره سوي پيغام له لاري خبر سوم چي حاجي محمد آصف جان (پاس يوسفي) وفات سوی دئ.

انالله واناالیه راجعون

د خواشينۍ ډېره درنه هنبمه مي پر مغزو راغله. شاوخوا مي دوستانو ته تيلفونونه وکړل، له هيچا سره مي د زړه د خوالې او غم سړولو مجال و نه موند. زه په دغه درانه غم کي د حاجي اغا له ټولي کورنۍ سره ځان شريک ګنم او په تېره بيا ګرانو ورونو عارف جان، اشرف جان او محترم جليل جان نقشبندي ته د زړه له کومي تسليت وايم او له ناکامه قلم ته پناه وړم.

پاس يوسفي صاحب مونږ (حاجي اغا) باله او زه ئې د مخلصانه دوستۍ وياړ لرم. د ده د وفات په خبرېدو مي ذهن د درو څلورو لسيزو خاطرو ته ولاړ. په تېرو شلو، پنځه ويشتو کلونو کي چي به حاجي اغا هر وخت ټورنټو ته تشريف راووړ، ما به هرومرو ورسره کتل او چي د خدای حق ووايو، هر وخت به ئې په خبر اخيستلو کي له ما څخه وار دمخه کاوه. د حاجي اغا مجلس ډېر خوږ وو. خبري ئې هيڅ وخت پر چا نه غمبدلې. اورېدونکی به تل په تلوسه کي وو، چي د ده له خولې څخه د وطن د وياړونو يوه په زړه پوري خاطره واوري. پاک خدای د ده حافظه له دغه راز خاطرو څخه مالامال کړې وه. په مجلس کي به ئې اولسي کيسې، د کندهار د محلي شاعرانو د

ظرافت نکلونه، زموږ د فارسي او پښتو ادب د کلاسیکو شاعرانو له کلامه خورا پر ځای بیتونه د خبرو پر وخت هر کله راته اورول.
حاجي اغا د جامعې له ټولو طبقاتو سره د مجلس اجنداء درلوده. له روښانفکرو سره به ئې د وطن پر حالاتو، د هیواد په تاریخ او د ملي مبارزینو پر کارنامو مستند بیانونه کول. له ادیبوهانو سره به ئې په مجلس کې د پښتو او فارسي ادب له ذخیرو څخه پرېمانه مثالونه راوړلای سوای. له سیاسیونو سره به ئې په مجلس کې هر وخت د هیواد پر ملي مصالحو ټینګار کاوه. له اولسي مشرانو سره په مجلس کې ئې د جرګو مرکو نرخونه هر وخت په پام کې نیول. لنډه ئې دا چې د ده په مجلس کې هر چا خپله ورکه موندلای سوای.
حاجي اغا ډېر پیاوړی قلم درلود. په پښتو او فارسي ئې نظم او نثر کیښې. فارسي شعر ئې د پوخوالي درجې ته رسولی او د حقیقي میني او عرفان په رنګ رنګولی وو. خو پښتو شعر ئې ټول د وطن خواري ورځي او د بې وطنۍ شواخون ته وقف کړی وو. په مجموع کې ئې د اشعارو محتوا زیاتره پر ملي او اولسي ګټو راتاوېدله. هر وخت چې به ئې شعر ووایه، هرومرو ئې زما سره شریک کاوه. په خپل ښکلي خط به ئې راته لېږه. یو وخت ئې راته لیکلي وه چې د شعرو نسبتاً غټه برخه ئې د وروستیو لسیزو په جریان کې تلف سوې ده. زه به دلته د ده د پښتو او فارسي کلام دوې نمونې راوړم.

ما هر سه هر څه زده کړه خو پښتو مه هېروه
غیرت او پښتونواله د پلرو مه هېروه
اتل وې په نړۍ کې د همت ساری دي نه وو
تاریخ دي ګوره ډک له حماسو مه هېروه
ګلشن او منظرو ته د بل ملک چې ګورې، ګوره
عظمت د خپلو غرونو او دښتو مه هېروه
ته خوار او زبون نه وې"هوتکي" تاریخ ته ګوره
شوکت د "ابدالیو" په چړچو مه هېروه
څرګند حقیقت دا دئ چې لوی هند و ایران ستا وو
" شبخون" او فتوحات د پښتنو مه هېروه
نوټونه ډېر چاپ سوي چې ځان خرڅ نه کړې افغانه!
جذبه او بد اثر د دې نوټو مه هېروه
غلام به ستا څه جوړ کې دا حلقه محسوسه نه ده
غوږ نیسه! پټ دامونه په دانو مه هېروه
مادي دنیا ورجذب کړې معنوي ارزښت دي هېر سو
دا وخت د امتحان خپل په مېلو مه هېروه
پر خاوره چې توی سوي هغه ویني خرڅې نه کړې
"پاس" ګوره! د احسان او خدمتو مه هېروه
***

واله حسنت نمیداند زیان و سود را
میدهد نذر رضایت بود را نابود را
تشنه لعل لبت آواز از کوثر کشد
"العطش" گوید، همی، تا سر کشد ناجود را
آمدم بهر طلب سوی خرابات مغان
تامگر از فیض مستان یابم آن موجود را
حیرت آئینه ام یادر فراموش خانه ام
غیر روشنگر که داند؟ آتش این دود را
در شبستان طریقت زاده وهمست و پوچ
بی چراغ حق جستن گوهر مقصود را
هر که غیر از تو نخواهد عون ابراهیم وار
میتواند یافت "بارد" آتش نمرود را
عالم لاهوت وحدت بر تر از ادراک ماست
دید باید باتفکر، عالم مشهود را
قبله دیوانگان طاق خم ابروی اوست

تارک دنیانمی جوید دگر معبود را
در ازل گفتم "بلی" غافل شدم از وسوسه
مغفرت خواهد کشود این درگه مسدود را
اینقدر دانم که "پاس" آشنایی مشکلست
حرمت مهر و صفا، ناممکن است مردود را

حاجي اغا د هیواد پر حالاتو هر وخت اندېښمن ښکارېدی. یو ځای ئې د پښتنانه پر غفلت خپله غوسه او قهر داسي ښکاره کړې دئ:

خپل د کور غل سوې، د دښمن مل سوې
په ستر گو ړوندسوې، په لاسو شل سوې
دنیا تېرېږي، قصې پاتېږي
"پاس" راته گوره! همکار د بل سوې
چي نه ویښېږې، مرگ دي مېلمه سه
عمري بیده سې، ورځ دي هم شپه سه

***

د حاجي اغا کورنۍ په کندهار کي په ډېر ښه نامه مشهوره وه. له خانزادگۍ سره ئې په څنگ کي ئې غریب پالنه هم درلوده. ځوانان او زاړه ئې ټول د تعلیم او تحصیل په گېڼه پسوللي او روښانه افکار ئې درلودل. د دې کورنۍ په باب به زه یو وخت که د خدای رضاوه، تفصیلي لیکنه وکړم. سمدلاسه به د حاجي اغا لنډ پېژندلیک له لوستونکو سره شریک کاندم.

حاجي محمدآصف جان (پاس یوسفي) چي موږ (حاجي اغا) باله، د افغانستان د خپلواکۍ د معرکې د ملي اتل او د سپین بولدک د کلا د سرښندونکي او فداکاره قوماندان جنرال محمدیوسف خان زوی، د سرتیپ محبوب شاه خان لمسی او د کوچي محمدظریف خان ابراهیم خېل سلېمانخېل کړوسی وو چي د ۱۳۰۳ هـ ش کال د حوت پر دریمه په کندهار کي زېږېدلی وو. د اوو کالو وو چي پلار ئې په شهادت ورسېد او ده په وړکینه د یتیمتوب څپېړه پرمخ وخوړه. په ۱۳۲۰ ش کال ئې رسمي ماموریت پیل کړ. پنځه کاله وروسته تر ماموریت ئې د حج فریضه اداکړه. له حج څخه تر راستنېدلو وروسته د ویښ زلمیانو له خوځښت سره یو ځای سو او تر سپین ږیرتوبه ئې د ویښتابه افکار ورسره ساتلي ول. یو وخت ئې ما ته په یوه لیک کي دا لنډۍ کښلې وه:

په وجود زوړ په هوس ځوان یم
په خوله خندا په زړه کي توري ویني خورمه

پاس یوسفي د اولسي جرگې په دیارلسمه دوره کي د کندهار ښار له دوهمي حوزې څخه د استازي په توگه وټاکل سو او په پارلمان کي د ملي او وطندوستو وکیلانو په حلقه کي شامل وکیل وو. په هیواد کي د شهید محمدداود خان د جمهوریت په اول کال د بغلان د والي په توگه وټاکل سو چي د ولایت په دوران کي ئې د پاکنفسۍ او عدالت خوښوني ویاړلی ریکارډ خوندي کړ.

د ثور په اوله فاجعه کي د څه مودې له پاره پلچرخي زندان ته واستول سو. د کارمل او نجیب په دوره کي څو واره له دولت سره همکارۍ ته وبلل سو خو ده دا بلنه و نه منله او د ناروغۍ په پلمه هندوستان ته ولاړ او له هغه ځایه د امریکا متحده ایالاتو ته مهاجر سو. په مهاجرت کي هر وخت د وطن یاد ژړاوه او ما ته ئې په یوه لیک کي کښلي وه چي: " ... خدای مو دي په خیر ژر وطن ته درسره بیایي، د

مسافر مرگۍ، او د جلا وطنۍ د مرگ او مير ځخه مو دي خدای وساتي". د خواشينۍ خبره ده چي دا ارمان ئې پوره نه سو او دا دئ، زه ئې اوس پر وفات باندي په پردېسۍ کي ژړېږم. حاجي اغا د سه شنبه په ورځ (۱۲ مه د اگسټ ۲۰۱۴ع) د نوي کالو په عمر په کلفيورنيا کي وفات سو.

حاجي اغا پاس يوسفي يو وخت خپل د ژوند حالات په نظم راته کښلي ول چي څو بيته به ئې دلته راوړم او پاک روح ته به ئې د مغفرت دوعا وکړم:

ساعت د غم وو، د زحمت په ورځ کي
زما زېږېده د مصيبت په ورځ کي
د حوت دريمه يو زر درې سوه درې
زما په خيال د مشقت په ورځ کي
پسله اوو کالو يتيم پاته سوم
پلار مي شهيد سو د رحمت په ورځ کي
که هوادار زما يې، هوتک صاحبه!
پس نه پاتېږم د غيرت په ورځ کي
په سنه شل کي سوم په کار کي شامل
دا رسمي کار وو د عسرت په ورځ کي
په شل پنځه کي د خدای کور ته ولاړم
حج مي ادا کړ د فرحت په ورځ کي
نوري قصې سته، کې په نثر اورې؟
نظم به ليکو د نصرت په ورځ کي

د دې څو کرښو په ليکلو سره د هغه حق اداينه نه کېږي چي حاجي اغا مرحوم پر ما باندي درلود. د دې حق مجراينه بل وخت ته پرېږدم.

(اللهم اغفره ورحمه وتجاوز عنه)

**د حاجي محمدآصف جان پاس يوسفي وېرنه**

**په مرگي چي (يوسفي پاس) ور رهي سو**
**پاس يو روړ د فرشتو د هرکلي سو**
**چي (پاس) ولاړی خوشالي ورسره ولاړه**
**بې له پاسه ژوندون تپوله د غمگي سو**
**ژړېده د (پاس) پر مرگ پاس د دوستۍ دئ**
**که دا پاس له منځه ولاړ پښتون نېستي سو**
**شرافت که د چا پاس پر سر جوغه وه**
**په قانون د پاس سر، تاج د پاچهي سو**
**پاس عزت دئ د پښتو، پاس درناوی دئ**
**زموږ (پاس) په دغو دواړو صفتي سو**
**د پښتون پاس په کړديو کي لا پاته**
**پاسنۍ ځکه دوهم نوم د کوچي سو**
**دا چي ځاځکي د رحمت راځي له پاسه**
**اوبه خور د کندهار پاس له غزني سو**
**نښانې ئې په ژوندوني لا ښکاره وې**
**د (حاجي اغا) وفات د جنتي سو**
**مرگی دئ حقه کاسه خو افسوس دا دئ**
**له مېړو مو وران کورگی يو مخ خالي سو**
**لټاوه چي مي تاريخ د (پاس) د مړيني**
**دغه بيت مي پر زړه ږغ گوا، هاتفي سو**
**چي مرگ پاس راځخه واخيستئ نيازمنو!**
**راته پاته" فقط غم" د "يوسفي" سو**

حل:
فقط (۱۸۹) + غم (۱۰۴۰) + يوسفي (۱۶۴) = ۱۳۹۳

حاجي محمدآصف پاس يوسفي (حاجي اغا) په ۱۳۹۳ ش کال د اسد پر ۲۱مه = ۱۲مه د اگسټ ۲۰۱۴ع وفات سو. خدای دې وبخښي.

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادونه

(پنځمه برخه)

**د خروښېدلي ارغسان په توپاني څپو کښي:**

تازه مي د افغانانو په یوه فابریکه کښي په کار لاس اخته سوئ ؤ. مالکانو، منېجرانو، سوپروایزرانو او کارگرانو یې د قدر په ستر گه را کتل. د زړې وظیفې پر خلاف مي، په دې کار کښي د ټرانسپورټ او غرمنۍ ډوډۍ امتیازونه هم لرل. د کار پوره یوه میاشت مي لا نه وه تېره سوې، چي نابېره له کابله یو لنډکی تَلگیرام / ټیلیگرام راغئ.

په تلگیرام کښي مي مېرمني د ضرورت وړ کتابو په باره کښي پوښتنه کړې وه. د تلگیرام له متن څخه مي داسي وانگېرل، چي ښایي مېرمن او اولادونه مي وکندهار ته را رسېدلي یا د راتلو په حال کښي (وي)؛ او په شیفري توگه را څه (څخه) غواړي، چي د را وستلو دپاره یې و مخ ته ورسم. د تلگیرام له یوې - یوې نیمي لیکي متن څخه مي بل هیڅ راز استنباط نه سواى اخیستلاى؛ ځکه د مهاجرت په لومړیو شپو او روځو کښي مي هیڅکله له کورنۍ سره د کتاب راوړلو پر مسأله خبري نه وې کړي.

په همغه ماښام مي د مېرمني د تلگیرامي پیغام موضوع، له ځینو خپلوانو سره هم شریکه کړله. له خپلوانو څخه چارا ته و ویل، چي سبحان هم سبا و چمن ته رهي دئ. سبحان زما د مور د ماما کشرى زوى ؤ، چي په کوټه کښي د افغان مهاجرو په یوه کمپ کښي تر څو کلني استوگني وروسته، څه موده مخکي له گرده کورنۍ سره و کراچي ته راغلئ ؤ. دا گړى سبحان، اسلم جان (له کابل څخه و پاکستان ته زما د سفر ملگرى) او زه درې سره د معمار پلازا په یوه مشترک بلاک کښي اوسېدلو. په وطن کښي هم زموږ او سبحان دوى تر منځ فقط د یوه کور فاصله وه. په دې ترتیب مو پر خپلوۍ سربېره د همسایه توب اړیکي هم خورا مزبوت ؤ. د کوچنیوالي په کلونو کښي به په اخترو، جشنو، کورنیو محفلو او نورو پېښو کښي زیاتره یو ځاى سره گرزېدلو.

که څه هم زما د ژوند وروستي کلونه له اصلي ټاټوبي (کندهار) څخه لیري په کابل کښي تېر سوي وو؛ خو سره له هغه هم زما او سبحان د مشغولتیا دپاره د کوچنیوالي او

زلمیتوب د زمانې خوږې او په زړه پورې خاطرې لړ نه وې.

په دې خاطر مې له ځانه سره وپتېیله، چې سبا باید ارؤمرؤ د کمپنۍ له مالکانو سره د خپل مشکل په باره کښې خبرې وکم. کې رخصت را کړئ خو ښه تر ښه. که نه نو پر خپله لار به ځم؛ او تر راتګ وروسته به په کم (کوم) بل ځای کښې، په بلې خوارۍ پسې وګرزم.

سهار وختې چې فابریکې ته و رسېدم، سمدلاسه مې له عمومي سوپروایزر سره د ترلاسه کړې* تلګیرام د متن په اړه خبرې وکړې. د هغه سلا هم دا وه، چې باید څه ګړی انتظار وکم؛ او شخصاً د فابریکې له مالکانو څخه رخصت واخلم.

په داسې حال کښې چې څو څو شېبې وروسته به مې بې اختیاره د ساعت و عقربو ته سترګې اوښتې، د غرمې تر دولسو بجو پورې په ډېرې بې صبرۍ سره د کمپنۍ د مالکانو را تګ ته منتظر وم. د همېشنې عادت پر خلاف دا روځ د مالکانو له ډلې څخه د هیچا څرک و نه لګېدئ.

په دې چې د کوَټې سروېس (د پاکستانیانو په اصطلاح کوچ) مازیګر مهال له کراچۍ څخه رهي کېدئ، ځکه مې نو تر دې زیات د انتظار وخت نه لاره. د «هر چه باد، آباد» په دود مې هر څه پر لوی څښتن وسپارل. پر یوه کوچنۍ سپینه پاڼه مې د مالکانو د خبرتیا دپاره د خپل عاجل سفر په باره کښې، په انګرېزي ژبه، څه و لیکل.

البته، رقعه مې له دې جهته په انګرېزي ژبه و لیکله، چې زموږ مالکانو په هند او پاکستان کښې دا وړدې استوګنې یا له دغو ژبو سره د ډېرې مینې په وجه، یوازې په انګرېزي یا اؤردؤ (اردو) ژبو لوستل کولای سول. د لیکنې ژبه خو یې همېشه یوازې او یوازې انګرېزې وه.

رقعه مې د فابریکې و عمومي سوپروایزر ته وسپارله؛ او له ځینو همکارانو سره تر خدای پامانۍ وروسته سیده را و وتلم.

له کارخانې څخه د ښاري موټرو تر تمځای پورې، د پښو لړ و ډېر پینځلس دقیقې لار وه. د دې لارې یوازې درېمه برخه د دوو نیمو - درو میترو (مترو) په پسور ډامبر وه، نوره پاته یې د تقریباً پینځلسو میترو په پسور ټوله خامه وه، چې ښوزلې لاژویان به دا اورښتو پر مهال دا وبو، ختو او چیکړ له شامته د زړه په دؤک پر تېرېدل.

که څه هم د سړک و دواړو خواوو ته له عمرونو راهیسې د کوچنیو کارخانو او تجارتي ګودامو منظم کاروبار روان ؤ، خو سره له هغه هم نه پاکستاني حکومت او نه هم د دغو تجارتي شرکتو او تأسیساتو خاوندانو د لارې په دې دردؤنکې حالت سر ګرزاوه.

عمومي سړک ته نیژدې د لارې په پاته برخه کښې و دواړو خواوو ته پخوانۍ هدیره وه، چې پر پاکستانیانو سربېره د ځینو افغان مهاجرو مړي هم پکښې ښخ وو. ویل کېده، چې له عمومي سړک څخه زموږ د مالکانو تر فابریکې پورې غزېدلئ سړک د هغه افغان په نامه یادېږي، چې د پاکستان تر جوړېدو مخکې یې د تجارتي ګودام په خاطر دلته واردواره مځکه اخیستې وه.

د لارویانو په زړو کښې د موسمي اوبو، ختو او لوشو تر څنګ بله لو (لویه) اندېښنه د پولیسو د شکوني ببره وه. که مې ریښتیا پوښتئ، نورو لارویانو غوندي زما زړه هم نن د پولیسو له اندېښنې او تلوسې خالي نه ؤ؛ ځکه په وارو وارو مې د سر په سترګو لیدلي وو، چې د همدې لارې په اوږدو کښې به ولاړو پولیسو د شاوخوا کارخانو او ګودامو مظلوم کارګران د شکولو او لوټلو دپاره درولي وو؛ او مجرمینو غوندي بې (به یې) په جېبو کښې پلټني او تلاښۍ ورکولې.

دا خبره په ټول پاکستان کښې عامه او مشهوره وه، چې پاکستاني پولیس له عامو خلګو څخه د څه د شکولو په خاطر له ځانو سره د هېروینو، تریاکو او چرسو پوړۍ یا داسې نور غیرقانوني مواد ګرزيي؛ او برالا وايي: که څه را نه کئ، بیا نو په خپله و وایاست، چې په څه فقره کښې مو لاس ترلي تر تانې/ تانې (پولیسو ماموریت) بوزم.

له پاکستاني پولیسو څخه نه یوازې د بې وسه او بې کسه مهاجرو افغانانو په زړو اوځې نتوتلې وه، بلکې د بومي پاکستانیانو زړونه یې هم له تراه او وحشته خالي نه وو. یو وخت د پاکستاني پوځ متقاعد صوبه دار مېجر او زما د کار په دې نوي ځای کښې د جنرېټر او برېښنا د چارو مسؤل، شکیل بهايي، د غرمنۍ ډوډۍ پر مهال، په دې باره کښې را ته و ویل:

- هارون بهايي! باور وکئ، په پاکستان کښې سړی له دوښمنه دونه نه ببرېږي لکه د پولیس والاوو څخه چې ببرېږي. تاسې خبر یاست، چې ما په پاکستاني پوځ کښې کلونه

کلونه د صوبه دار مېجر په توګه خدمت کړئ دئ؛ خو له هغه وخته چې تقاعد سوئ یم، همېشه له پولیس والاوو څخه خپله لار پېچم؛ ځکه هغوی د هیچا پر پت او عزت نه دي؛ اروُمروُ خلګو ته ازار او تکلیف رسیي.

شکیل بهايي اصلاً د پنجاب اوسېدونکی ؤ، چې دا وخت په خوارۍ او غریبۍ پسې و کراچۍ ته راغلئ ؤ. د پاکستاني پولیسو په باره کښې مې، د هغه سپینو او بې پردې خبرو، همېشه په مغزو کښې ازانګې کولې.

له نېکه مرغه، په دغه روځ د کارخانې او عمومي سړک تر منځ لار کښې، د غلو او شکوُنکو پولیسو نخښه نښانه نه وه. د ارامي ساه په ایستلو سره و عمومي سړک ته و رسېدم؛ او تر څو دقیقو ځنډ وروسته و هغه نسبتاً خالي ښاري بسګوټي ته ور پورته سوم، چې د ماړي پوُر روډ له لارې و «سوهراب ګوټ» ته رهي ؤ.

په عادي حالاتو کښې زما د کار له ځای (شېرشاه) څخه تر کوره (سوهراب ګوټ) پورې شاوخوا یو نیم ساعت وخت لګېدئ. د بېروبار پر مهال تر دوو - دوو نیمو ساعتو هم اوږدېدلای سوای. دا ګړی د مازادا له ګړندي تګ او ارامي فضا څخه په زړه کښې ډېر خوښ وم؛ خو څو دقیقې لا نه وې تېرې، چې د موټر سرعت سؤکه سؤکه لږ سو. دې وضعي په چوکۍ کښې وارامي ناستې ته نه پرېښوولم. کله به مې دې او کله به مې آخوا سترګې شخې نیولې وې. تر څو دقیقو انتظار وروسته ځیني مساپر له موټر څخه کښته سول. موټروان هم د لارې د یومخیز بندښت له اسیته د مازادا

ماشین په ټپه ودراوه؛ خو زه لکه پر اور چې ناست وم. په یوه دقیقه کښې به څو پلا له چوکۍ څخه پورته کېدم؛ د ښکارۍ په دود به مې څلورو خواوو ته ځار کاوه؛ او بیرته به نامېندۍ سره کښېنستم.

د تشویش او پرېشانۍ په دې عالَم کښې یوه تورمخي هلک په ډېر مهارت د کمیس و بغل جېب ته ګوتې را ننیستلې وې، چې له نېکه مرغه مې تر څه ایستلو دمخه ګوري مؤري و نیاوه. ده به ارؤمرؤ زما له پرېشانۍ څخه استفاده کوله، خو خبر نه ؤ چې زما فکر او حواس تر هر بل وخت په پرېشانۍ کښې لا ښه کار کیي. خیر، هلک ته مې له پاکستاني نرخ و نوا سره سم د «شرم و حیا نه لرې، چې په سپینو سترګو د خلګو په جېبو ګوتې ننباسې!» خبرې وکړې؛ او ده هم د سر په کښته کولو سره، سمدستي له موټره مخ پرته کئ.

د مازدا و مخ ته د سوو لارییو او نورو په ټپه ولاړو موټرانو کتارو کور ته د رسېدو ټول اومېدونه شنډول. هک پک وم، چې خدایه څه وکم. د لارې خلاصېدو په تمه، په پټو سترګو په مازدا کښې کښېنستو له ورایه د سبحان په ملګرتیا دکؤټې له سفر څخه د پاته کېدو مانا لرله. له بلې خوا د ساعت عقربونه په خورا چټکۍ سره ګرزېدل. شېبه په شېبه دکؤټې د سرو ېسو د رهي کېدو وخت را نیژدې کېدئ.

په دې سفر کښې مې د سبحان پر ملګرتیا ډېر حساب کاوه؛ ځکه تر کندهاره خو به مې په یو چم ځان رسولی وای، مګر د کندهار په جنګي او ناامنه شرایطو کښې د شپې د تېر دپاره د پاډمن ځایځایګي موندنه څه اسانه خبره نه وه. د مېرمنې او اولادو د راوستلو پر مهال خو د داسې خوندي ځای موندنه نوره هم مهمه او ضروري وه. د ډېرې خواشینۍ او ارمان ځای ؤ، چې دا وخت خپله پلرنۍ او مورنۍ مېنه، تر پردي پاکستان هم په هره مانا پردۍ ایسېدله. خپلوان، اشنایان او همسایګان ګرده پر شلو لارو خواره واره وو. له خپلوانو او شناخته ګانوڅخه یوازې د سبحان مشر ورور، مالیم صاب قادر جان، له خپلې اصلي مېنې (سرپوزې) څخه لیرې د کیپتان مدد خان چوک په شاوخواوو کښې د خپلو خسرخېلو په کور کښې اوسېدئ.

د وخت د حساسیت په پوهېدو سره د مارې پؤر روډ و موټر جام ته ډېر منتظر پاته نه سوم. له مازدا څخه مې د را کښته کېدو پرېکړه وکړه؛ او په چټکو چټکو ګامو مې خپله لار واخیستله. تر څو دقیقو چټک رفتار وروسته مې حتا په ځغاسته هم شرو وکړه. تر څه مزل وروسته مالومه سوه، چې سرک د دوو لویو لارییو د ټکر په وجه بند سوئ ؤ. د ټکر تر ځای آ خوا د هر لاین موټرونه په منظم ډَول پر خپلو لارو رهي وو. په داسې حال کښې چې خولې مې پر تندي را ماتې وې، په چټکۍ سره د سوهراب ګوټ و یوې بلې مازدا ته ور پورته سوم.

که څه هم دې مازدا په چټکۍ سره لار وهله، خو په لار کښې د وخت ضایع کېدو په سؤَب له سبحان سره د ګډ سفر هیله یو څه ګرانه برېښېدله. کور ته تر رسېدو وروسته مې سمدلاسه د سفر غؤټه او غؤړاشه پر اوږو واړوله؛ او بېله ځنده د سبحان دوی و اپارتمان ور غلم، چې پاکستانیان یې « فلېټ» بولي. تر دروازې ټکولو وروسته د سبحان وراره، ننګیالی، را و وتئ.

- ننګیالییه! اکا دې ته و وایه، چې هارون

راغلئ دئ. ژر راووزه، چې وخت کم دئ.

-اکا خو مې ولاړئ.

-څه مهال ولاړئ؟

- نیم ساعت به کیږي.

- که ځان چټک ور و رسیې شاید تر اوسه به لا د نمایندګۍ سره ولاړ یي. په همدې ترخ کښې د ننګیالي مور، د سبحان مشره ورېنداره، له کوره راووتله.

- هارون جانه! سبحان خو تر اوسه ستا په تمه ناست ؤ. لږ ګړی مخکې ووتئ. که ځان ژر ور و رسیې، شاید تر اوسه بې لا موټر حرکت نه یي کړئ.

- کور مو ودان. سیده هورې ور ځم. خدای دې وکي، چې پیدا یې کم. خدای پامان.

- په مخه مو ښه.

د دې خبرې په اورېدو سره مې د معمار کمپلیکس او الآصف پلازا تر منځ د پښو لار په خوله ور کړه؛ ځکه په بس کښې تګ څو چنده زیات وخت غوښتئ. د پینځلسو دقیقو لار مې په پینځو دقیقو کښې و وهله. په داسې حال کښې چې له تېزې ځغاستې څخه مې په ډېرې سختۍ ساه شړله، پر شپږمه دقیقه د کوټې د سرویسو و اډې ته و رسېدلم. د سبحان هیڅ دَرک او خَرک نه ښکارېدئ. سمدستې د نمایندګۍ دفتر ته ورغلم.

- منشي صاب! د کوټې کوچ تللئ دئ که د دې په ایسته حرکت کیي!

- دکوټې یو کوچ خو تقریباً نیم ساعت دمخه ولاړئ. دا بل کوچ فقط یوه پاسینجر ته معطل دئ.

- یو پاسینجر خو دا دی زه یم.

- ټیک ده.

ځای پر ځای مې ټکیس (ټکیټ) را نیوئ.

- وروره! و هغه عظیمې کوچ ته ور و خېژه، چې د سړک پر غاړه ولاړ دئ!

په ځغاسته د سړک د غاړې و عظیمې سروېس ته ور وختلم.

- وروره! دې خوا ته را تېر سه، سیټ دې دلته دئ. په سروېس کښې ولاړ منتظم په زوره را ږغ کړه؛ خو زه د سروېس په سر کښې له موټروان سره ودرېدم.

- استاذه سلام علیکم!

- و علیکم السلام.

- د لارې ملګری مې په آ بل کوچ کښې تللئ دئ. ډېر ضروري کار ور سره لرم. که دې په لار کښې ور سره مخامخ کړم، ډېر لوی احسان به دې یي.

- راځه کښېنه. انشاء الله د ماښام ډوډۍ به له ملګري سره پر یوه هوټل وخورې. ټول کوچونه پر یوه هوټل وډوډۍ ته دریږي. موټروان په مینه ناکه او خوږه کنداري لهجه وویل.

- الله دې غم مه راکوه!

د عظیمې کوچ کنداري موټروان په ډېر اتپات د ښار له واټو او سړکو څخه ووتئ؛ خو لویې لارې تې (ته یې) په رسېدو سره سمدستي و اکسلېټر ته زور ورکئ. ښه مې پر پام ؤ، چې د سترګو په رپ کې لسګونه موټران تر شا پرېښوول. سره له دې هم د هغه «سدا بهار» کوچ هیڅ څرک نه ښکارېدئ، چې سبحان پکښې سپور ؤ. د شپې د لسو بجو په شاوخوا کښې زموږ کوچ د لارې په اوږدو کښې د یوه نسبتاً غټ او روښانه هوټل و مخ ته و درېدئ. ځینو نورو هوټلو غوندې په دې هوټل کښې هم دننه او دباندې د هغو رنګارنګ اوږدو څراغانو د رڼا سره غوځکه وه، چې پاکستانیانو به د انګرېزانو په دود «ټیوب لایټونه» بلل.

د هوټل و شاوخوا ته خورا ډېر سروېسونه، لاری، ټربلرونه او ځینې کوچنې موټران ولاړ وو. زموږ په سروېس کښې ناست مساپر ټول د ډوډۍ خوړلو، اوداسه، لمانځه یا څه بلې اړتیا په خاطر د هوټل پر خوا ور مات سول؛ خو ما تر هر څه دمخه په سبحان پسې سترګې څلور کړې. دې خوا، آخوا يې هیڅ اثر نه ښکارېدئ. ښېله شکه، په دونه ګڼه ګونه کښې د چا پیدا کول څه اسان کار هم نه ؤ. زه لا په ده پسې لالهانده ګرزېدم، چې ناڅاپه د «سدا بهار» او دوو نورو سروېسو کلینرانو د خپلو مساپرو د ور غونډېدو ناره وکړه. خوشاله سوم، چې د ملګري سروېس مې لا تر اوسه همدلته ولاړ دئ. د کلینرانو تر نارو اروېدو وروسته مې په تلوار سره د رهي کېدونکو سروېسو و خوا ته ور و ځغستل. «سدا بهار» کوچ ته ور وختلم، خو سره له هغه هم د سبحان دَرک نه مالومېدئ. البته،تر اوسه لا نیمايي مساپر و سروېس ته نه وو راغلي. په ډېره تلوسه د کوچ د دروازې و مخ ته و درېدلم.

د خدای کړه او زما ور ته کاته وه، څو دقیقې وروسته، سبحان لالا له خپل همېشني عادت سره سم، دروند دروند، کرار کرار د سروېس پر لور را روان ؤ. زما په لیدو يې له خوښيیه لو چغه کړه:

-د خدای بنده چیرې وې؟ په ډېر انتظار دې و وژلو.

-چیرې دې پر ېږدم. ته وګوره چې په څه ډَول مې خان در پسې را و رساوه.

- دوا دې سه! ښه سو چې په خیر را ورسېدې؛ مګر دا و وایه، چې ولې دونه ځنډېدلې؟

د فابریکې و مالکانو ته مې د خپل اوږده انتظار او د سړک د بندېدو په باره کښې مې د خپلې دردؤنکې کیسې ځینې ټکي ور ته بیان کړه.

- ته ورسه ډوډۍ دې وخوره! زه به نور موټر ته ور وخېژم. انشاء الله سهار به دکؤټې په اډه کښې سره ګورو.

-څه په مخه دې ښه!

«سدا بهار» او څو نورو کوچونه په څو دقیقو کښې یو په بل پسې د کؤټې پر لور رهي سول. زموږ د سروېس مساپرو لا د ډوډۍ خوړلو، اوداسه، لمانځه او نورو ضرورتو د پاره کافي وخت لاره. په هوټل کښې ترخه بیریاني (ترخې اوریجې)، غورمه، پالک، ښېنډۍ، بانجان، دال نخود او ساړه شربتونه لکه کوکاکولا، فانتا، پیپسي، سپرایټ، سېون اپ او داسې نور په ښېخر موندل کېدل. ما چې د پاکستاني هوټلو او رستورانو د ترخو خوړو پر ځای همېشه له تودو شیدو سره د کېک اوکولچې یا له خوږو مستو سره د تودې ډوډۍ و خوړلو ته ترجیح ورکوله، دا پلا مې هم د خوږو مستو او تودې ډوډۍ پرمایښت ورکئ. البته، د کراچې او شاوخوا سیمو خوږې او کلکې مستې د افغانستان تر مستو ډېرې خوندورې دي. زموږ د سروېس مساپر هم تر ډوډۍ خوړلو،اوداسه او لمانځه کولو وروسته کرار کرار و کوچ ته وختل.

- څنګه سو انډيوال دې و لیدئ؟ د سروېس موټروان په زینو/ ځینو کښې د پورته کېدو پر مهال په غرور او خوښۍ پوښتنه وکړه:

- استاذه! کور مو ودان. که ستاسې کومک نه وای، د لیدو امکان يې ډېر لږ ؤ.

-ښه سو چې و دې لیدئ. استاذ په خندا او خوښۍ سر و ښوراوه.

د هوټل و شاوخوا ته ولاړ کوچونه یو په بل پسې کؤټې خوا ته رهي سول. که څه هم عظیمې تر ټولو بسو وروسته له کراچې څخه را وتلئ ؤ،

خو تر دې وروسته هم تر خورا ډېرو سروپسو او موټرانو مخکې سو. په دې چې له کراچې څخه دکوټې پر لور د پولیسو یا پوځیانو د تلاښۍ پوسته موسته نه وه، نو سروپسو او نورو موټرو هم ببله ځنډ او درېدو، په خورا چټکۍ لارې وهلې.

سهار وختې، عظیمې کوچ په داسې حال کښې د خپلې نمایندګۍ و مخ ته و درېدئ، چې دکوټې د ښار پر سړکانو لا چپه چپتیا وه. ټول مساپر د سترګو په رپ کښې کښته سول؛ او بېلابېلې لارې یې په خوله ورکړې. یوازې زه د سبحان د را رسېدو په تمه د نمایندګۍ و مخ ته منتظر و درېدم.

د وخت په تېرېدو سره کرار کرار پر سړکانو د رخشو او موټرانو بېروبار زیاتېدئ؛ خو سره له دې هم د «سدا بهار» کوچ هیڅ څرک نه لګېدئ. د هرې شېبې په تېرېدو سره مې اندېښنه لا پسې زیاتېدله. عجبه ده «سدا بهار» کوچ تر موږ دمخه رهي سو، خو بیا هم تر اوسه نه دئ را رسېدلئ! که په ډېر انتظار ناوخته سي، بیا به تر کندهاره ځان څنګه رسومه؟ دا هغه اندېښنې او پوښتنې وې، چې هره شېبه مې په مغزو کښې دورې هورې ګرزېدې. سره له دې ټولو اندېښنو، بې صبره بله هیڅ لار نه وه. دې خوا، آ خو مې د بې مفهومه قدم وهلو په ترڅ کښې نابېره و بغل ته یوه غوړازه رخشه ودرېدله. چې سترګې مې ور واړولې، سبحان لالا پکښې ناست ؤ. په یوه ساه مې ځان ور و رساوه.

- چیرې وې مسلمانه! زه خو دې په ډېر انتظار و وژلم. اریان وم څه وکم او پر کمه خوا مخ و نیسم؟

- هارون جانه! نه پوهېږم، چې زما و ستا په سفر کښې ولې دا جنجالونه او اړې پیدا کیږي؟

- څه خبره وه؟ کیسه وکه!

- بله کیسه نه وه په لار کښې دکوچ ټیر خراپ (خراب) سو.

- ولې بل ټیر میر یې نه درلودئ؟

- بل ټیر یې درلودئ، خو په پایه کې دننه څه شی مې خراپ ؤ. موټران او کلېنر دواړه په اخته وو، مګر د کار سر و پای یې نه مالومېدئ. تا ته مې ډېره سودا وه، خو د لاسه مې هیڅ نه کېدله. کله چې کوټې ته را و رسېدم، په اډه کښې هیڅوک نه وه. دستې مې را په یاد سوه، چې ته خو به حتماً عظیمې کوچ له اډې سره انتظار یې. ما ته پخوا د عظیمې کوچ اډه را مالومه وه. دستې مې رخشه و نیوله؛او دا دئ په ځغاسته مې ځان در ته را و رساوه.

- سبحان پاچا تا ته خو مالومه ده، چې ما ته په دې ښار کښې بې ځکې و اسمانه بل هیڅ لار او ګوذر نه دئ مالوم. اریان وم، چې خدایه دا سړی څه سواو چیرې یې پوښتنه وکم؟ په ریښتیا سره ډېر اوږد او دردوونکې انتظار ؤ.

- د خدای فضل و سو، چې پر کمه بله خوا نه یې تللئ. که نې نو په کم هوټل یا مساپرخانه کښې به در پسې ګرزېدلو؟

- بلا وه، برکت یې نه ؤ.

- هارون جانه! که زما منې راځه اول زما د باجه دوی کره یو څو ساعته ارام وکو. زه خو د کراچې او کوټې په سفرو اموخته یم. تا ته چې ګورم ډېر ستړی را مالومېږې. که خدای کول، ماپښین مهال به د چمن پر خوا ور رهي سو. شپه به هورې زما د خورځې دوی کره تېره کو. سبا سهار به وختې تا د کندهار پر خوا رخصت کو. زه به په چمن او سوړخاو (سُرخاب) کښې د ځینو دوستانو و لیدو ته ور شَوَه سَم. که اوس حرکت

وکو، کندهار ته به ډېر ناوخته و رسېږي. تا ته مالومه ده، چې په کندهار کښې څوک د ماښام تر اذان وروسته تګ راتګ نه کیي.

- سبحان پاچا! ما خو دي ناحقه ملګری نه دئ کړئ. په دې ښه پوهېږم، چې دکوټې، چمن او کندهار په ټولو نزاکتو دي تر ما ښه سر خلاصیږي.

- زما نخشه چې دي خوښه سوه، را څه دلته یوه رخشه ونیسو؛ او سیده زما د باجه دوی کره ولاړ سو. تا ته خو مي ویلي وه، چې زما باجه او د خورځې مېره سره ورونه دي. په دې خاطر نو که د راقیې دوی کره څو باید د لېوره د کور حال و احوال یې هم ولرو. مېره یې خامخا د خپل ورور پوښتنه کیي.

- ښخي مي خوښه ده.

دواړه یوې رخشې ته و ختلو او د پینځلسو دقیقو په شاوخوا کښې د سبحان د باجه، ګل احمد جان، دوی و کور ته و رسېدلو. ګل احمد جان هم سبحان غوندي چاغ، شلنډ او چارشانه سړی ؤ، چې له مېرمني او کوچنیانو سره یو ځای دکوټې په یوه غریبه سیمه کښې پروت ؤ.

ګل احمد جان تر تاوده روغبړ وروسته په ځغاسته داسي خوندَوري شیرچایي جوړي کړې، چې دکوټې په سړه هوا کې د کراچۍ د سفر ټوله ستړیا او ستوماني را و ایستله. ګل احمد جان دکوټې د «کنداري بازار» ؤ یوه دوکان و مخ ته د خلګو ساعتونه سمول. په سړو هواوو، واورو او بارانو کښې به چندان کار ته نه تئ. پر ټولو مشکلاتو او ناخوالو سربېره، له ژونده دونه خوښ او راضي بر ښېښدئ، چې یوه شېبه یې خوله له خندا څخه نه سره ور ټولېدله.

- ګل احمد جانه! موږ به نو کراړ کراړ د اډې خوا ته ور چکر سو. سبحان لالا، د غرمې تر ډوډۍ وروسته په نسبتاً درانه او لړزېدلي اواز ور ږغ کړه.

- وختي دئ یاره! د چمن موټران خو تر ماښامه روان یي. ګل احمد جان په خپله همېشه خندنۍ لهجه ور غبرګه کړه.

- خبره خو دي ښخي سهي ده. مخسد مي دا ؤ، چې وهارون جان ته دکوټې د ښار یو لنډ چکر ور کم. په دې چې په کوټه کښې ښخي ناولده (نابلده) دئ.

- سمه ده. در ځئ زه مو هم تر یو ځایه ملګری یم.

- راځه، خدای دې راوله!

په «کنداري بازار»، «جناح روډ» او ځرمه سرکانو کښې مو تر لنډ او چټک چکر وروسته د چمن د اډې و خوا ته لار جوړه کړه.

په اډه کښې مو له ګل احمد استاذ څخه خدای پاماني واخیستله. موږ د چمن و موټر ته ور وختلو، ده بیرته د کور لار په خوله ورکړه. ګل احمد استاذ څه موده وروسته و کراچي ته په کډه ته راغئ. څو کاله یې په الآصف پلازا کښې د ساعت سازۍ کِسب و کار کاوه. په هر حال کښې بې همېشه خوله له خندا ډکه وه.

سبحان د لاري په اوږدو کښې د روسي لښکرو پر ضد د سرپوزه والو د جهادي حماسو او دکوټې په شاوخوا کښې د افغان مهاجرو د بېلابېلو کمپو، په تېره بیا د سوُرخاو کمپ په باره کښې خپلي په زړَه پوري خاطرې را ته و ویلې.

سبحان او د سرپوزې ځیني نورو

شناختګانو د روسي لښکرو د يرغل پر مهال د ګلبدين حکمتيار د اسلامي حزب په ليکو کښې جهاد کاوه؛ خو اوس له دې خبرو څخه ډېر ستړی او ستومانه ښکارېدئ. په دې خاطر يې د جنګ او ورانۍ تر خبرو د موسيقۍ له اروېدو او د فوټبال د نړيوال کپ د سياليو له ليدو څخه ډېر خوند اخيستئ.

زما او سبحان تر منځ لا د مهاجرتو او جهاد د دردونو په اړه خبري او کيسې رواني وې، چې دوه سيټه ډاټسن د چمن په اډه کښې برېک و واهه. د پښو تر شاوخوا پينځلسو دقيقو مزل وروسته د سبحان د خورځې، راقيې، کور را ورسېدئ.

- راقيې راسه چې څوک مي را وستئ دئ؟ که دي و پېژندئ، ريشتيا چې هوښياره او ذهينه يې!

راقيې تر سلام وروسته څو پلا په ډېر ځير او دقت پورته او کښته را ته وکتل؛ خو تر لسو - يوولسو وارو ليدوکتو وروسته يې هم د پېژندګلوۍ څه څرک و نه لګاوه. راقيه جانه تر خپل خريدار نظر وروسته هکه پکه ودرېدله.

- نانې ماما! ما خپل زور و واهه، خو دماغ ته مي نه راځي. اوس يې نو را وښيه، چې څوک دئ. تر څو شېبو تلوسې وروسته، سبحان له خندا په ډکه خوله ور ته و ويل:

- د «شيرينو» ورور، هارون جان، دي و نه پېژندئ. د «شيرينو» د نامه په اروېدو سره د راقيې د کوچنيوالي ټولي خاطرې را ژوندۍ سوې. زما کشره خور، شيرينو، د راقيې او د هغې د کشري خور همزولې او ټينګه ملګرې وه.

راقيې په منډه د چايو پتنوس را وړئ؛ او تر هر چا مخکښې يې د شيرينو د واده، کوچنيانو او ژوندانه په اړه هراړخيزې پوښتنې وکړې.

د راقيې مېړه (د ګل احمد استاذ مشر ورور) په همغه چمن کښې په خوارۍ او غريبۍ اخته ؤ. له کار وکتار څخه يې داسې ښکارېدله، چې د دوو لاسو په خوارۍ يې ښه ګوزاره نه کېدله. سربېره پر دې يې له زياتو مېلمنو څخه هم په ښکاره سر ټکاوه.

- کور مو لکه د رېل ټېسن (سټېشن) هيڅ وخت د مېلمنو نه خالي کيږي. د کندهار خپلوان زمونږ د کوره کوټې ته ځي. دکوټې خپلوان او شناختګان هم پر دغه لار وکندهار ته تګ راتګ کيي. راقيې په چمن کښې د ژوند ځينو مشکلاتو ته د اشارې په ترځ کښې و ويل.

خدای شاهد دئ چې د راقيې د دې ګيلو او ماڼو په اروېدلو ډېر کوچنی سوم؛ ځکه زه هم د هغو نابللو مېلمنو په ډله کښې وم، چې له کور څخه مې د «ټېسن» په توګه استفاده کوله؛ خو د راقيې او مېړه له تاوده هر کلي څخه په ځرګنده ښکارېدله، چې زما په ور تګ ډېر خوشاله دي. تر لږ سوچ او دقت وروسته مي سد و رسېدئ، چې له دې ګيلو او ماڼو څخه د راقيې بې بې مخسد د سبحان لالا له لارې تر هغو امريکا مېشتو ماماګانو پورې د خپلو اقتصادي مشکلاتو ور رسول وو، چې کله ناکله يې د بسپنې لاس ور ته را غزاوه.

نور بيا ...

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

(د عبدالظاهر څرک په نوم)

اووم لیک

دوهمه برخه

۱۹۹۸/۴/۱۷م

۳. تا د خپلې پورته ذکر سوي پوښتني په توضیح کي وړاندي پسي کښلي دي، چي: "اسلام یو پراخ دین دئ که په صحیح مفهوم عملي سي ښه جامعه جوړولای سي". دغه مجهوله صیغه چي په معلومه واړوو، نو به ووایو چي څوک ئې په صحیح ډول عملي کړي؟ غالباً چي دغه پوښتنه به لاجوابه پاته سي. دا خو د اوس وخت پوښتنه ده خو ځیني ډېر مهم او حیاتي سوالونه په خپله په اسلام کي هم لاینحله پاته دي چي پر دوو درو به ئې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم د پیغمبر صلی الله علیه وسلم تر رحلت وروسته تاسف او ارمان کاوه، له هغې جملې څخه په اسلام کي د خلافت موضوع ده. او دا هغه لومړنۍ موضوع ده چي په اسلام کي ئې اختلافات راوستلي دي. حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه خلیفه سو. د ده په استحقاق کي خبره نه ده - اما پر کم اصل او د چا له خوا؟

د دې له پاره واضح او کافي دلیل نسته. د ده د وصیت پر اساس دوهم خلیفه وټاکل سو. د هغه هم په تقوی او صلاحیت کي ویل نسته. مګر آیا د خلیفه د ټاکلو له پاره دغه وصیت مشخصه طریقه ده؟ که داسي وي نو بیا د لومړي خلیفه له پاره دغه ډول وصیت چیري وو؟ آیا دغه دواړه خلیفه ګان په اتفاق ومنل سول؟ داسي هم نه وه. حضرت عمر رضي الله عنه په خپله د یوه مسلمان له طرفه شهید سو. خو هغه بیا د مرګ پر وخت د خلیفه د انتخاب امانت یوې شورې ته وسپاره، چي له اوو نفرو څخه جوړه وه. دغه وصیت بیا د حضرت صدیق رضي الله عنه د وصیت سره تفاوت پیدا کړ. هغه مشخص نامزد په ګوته کړ او د حضرت عمر رضي الله عنه د انتخاب وصیت بیا دوه مرحله ایز وو: شوری – بیا خلیفه. خو اصلي خبره دا ده چي آیا په دغه دریمه لار نو اختلاف پای ته ورسېدی؟ د هغه نتیجه دا سوه چي حضرت عثمان رضي الله عنه د قرآن د تلاوت په وخت کي د نامعلومو مسلمانانو له لاسه شهید سو او په لومړني انتخاب کي هم د حضرت علي رضي الله عنه له پاره د هغه منل ګران پرېوتلي وه. سوال دا دئ چي آیا وصیت نو د خلیفه د انتخاب له پاره حکم دئ؟ اصل

دئ او که پر نسیب دئ؟ که داسي وي لکه د لومړي خلیفه له پاره چي دغسي شی نه لیدل کېږي نو د څلرم خلیفه له پاره هم څه خاص تشریفات نه دي په سترګه سوي او دغه د اختلافاتو څخه په ډکه فضا کي منځ ته راغلی او عامه قبول ئې تر لاسه نه کړ. مخالفین چي ئې په هر نامه یاد کړي یاد به سي اما په اسلام کي اختلاف راغی. حضرت معاویه رضي الله عنه بیعت خو لا څه کوې چي مخالفت ئې پیل کړ او شام ئې په اداره کي له مدینې څخه جلا کړ. څلرم خلیفه هم د یوه مسلمان له طرفه شهید سو. د څلور له جملې څخه درې تنه په خپله مسلمانانو شهیدان کړه او حضرت معاویه رضي الله عنه میراثي سلطنت باب کړ. د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت معاویه د اختلافاتو په نتیجه کي مرجیه شیعه او خارجي فرقې منځته راغلې. ته نو پورته ذکر سوو اختلافاتو ته اجتهادي اختلافات ووایه او دا چي د خدای تعالی په حضور کي به لا اجر هم پر بنا وي. خو دنیایي نتیجه ئې په نهضت کي درز اچول سوی دئ. که څوک د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه کارنامې او عدالت یا هم د عمر ابن عبدالعزیز اموي خلیفه تقوی په ګوته کړي نو دا سوال طرح کېږي چي اوس به د هغو خبرو امکان په دا زر میلیونه مسلمانانو او ۵۲ مستقلو مملکتو کي موجود وي؟ او آیا د هغو کارنامې د هغو د شخصي سلیقې او فردي تقوی محصول به نه وي؟ که داسي نه وي په دا یو زر څلور سوه کاله کي نو فقط دغه دوه مثاله کفایت کولای سي؟ وراندي او وروسته بیا ولي چا داسي و نه کړه یائې و نه کړای سوه؟

زه نه پوهېږم چي ته د اسلام دغي پراخۍ ته اشاره کوې او که داجتهادي زمانې وسعت ته؟

وایي چي د حضرت امام ابو حنیفه نعمان بن ثابت کوفي په عصر کي شپږ سوه مجتهدین موجود وه، تر هغه وروسته لا نور مذاهب هم منځته راغله، وروسته د اهل سنت والجماعه د یوې اجماع په نتیجه کي د اهل سنت له پاره پر څلورو مذهبو اتفاق وسو. پر ته له ترجیح، البته چي د اهل تشیع فرقې د اسماعیلي او درزي په شمول د خوارجو فرقې د دې فیصلې تابع نه دي او لا نوي نوي فرقې او تازه تازه انشعابات نور هم پسي راوزي لکه قادیانیان، بهائیان، دا چي څوک ئې مسلمانان بولي که نه، خو دوی ځانونه مسلمانان بولي. د وهابیانو انشعاب، اهل حدیث، اهل قرآن ... فلسفي مکتبونه او مذهبونه لکه د معتزله ډلي، د اشعریه ډلي ... که ټول ملل او نحل په نظر کي ونیول سي واقعاً چي د اسلام وسعت ښکاره کوي.

مګر ته چي له دغه څخه یوه صالحه جامعه جوړول غواړې، دا دي په زړه کي دي چي یوه فرقه پر دا نورو ټولو مسلطه کړې؟

د تاریخ سیر دا نظریه تائیدوي او ناممکن ئې ګڼي او که د دا ټول معجون څخه یوه داسي فرقه جوړوې چي خپل اصل ته رجعت ولري؟ دا به نو هم امکان و نه لري او فقط پر موجودو فرقو به یوه بله زیاته سوې وي. ۷۲ نه ۷۳ به وي. آیا غوره به نه وي چي څوک دا ومني چي هر څوک پوهېږي او مذهب ئې او د قیامت په ورځ به خدای تعالی

د حق او باطل تر منځ حکم کوي. پر دې دنیا به دا ومنو چي "لکم دینکم ولی دین" یا "و ان کذبوک فقل لی عملی و لکم عملکم انتم بريئون مما اعمل و انا بریٔ مما تعملون (سوره یونس: ۴۱).

او د دنیایي چارو له پاره هغه دنیایي ازمویل سوې او کامیابه لاره غوره کړو یعني د دین او دولت تفکیک د دین د کامل احترام او آزادۍ سره.

۴. پوښتنه دي کړې وه چي اسلام او نشنلیزم یو له بله سره اختلاف یا تضاد لري که نه؟ زما په عقیده دغه دوه شیان سره بېل دي اما نه تضاد سره لري نه تناقض او نه هم تقابل.

وړاندي به مي ضروري لیکلي وي چي دین او مذهب د خدای تعالی او بنده اړیکي ښکاره کوي او مقصد ئې اخروي سعادت دئ. که څه هم په مذهب کي د فردي اخلاقو او اجتماعي مناسباتو له پاره هم څه څه مقررات موجود دي او د هغو د رعایت په نتیجه کي د دنیایي ژوند رفاه او ښېگڼه هم تامینېږي. خو د هغو هم اصلي مقصد په بعدي ژوند کي گټه تر لاسه کول دي. دنیایي خیر ئې ضمني اوُ ثانوي هدف دئ. ځکه نو د دین ضد بې دیني ده مادیت دئ، دهریت دئ، نشنلیزم نه دئ. د توحید ضد شرک دئ او نشنلیزم نه دئ. د هغو پر خلاف نشنلیزم یو سیاسي او اجتماعي طرز تفکر دئ چي کله اقتصادي اړخ هم درلودای سي او د انسانانو تر منځ په یوه واحد وطن کي د انساني ذات البیني روابطو ډول ښکاره کوي. د انسانانو په لاس جوړ سوی یا د هغو د مفکورې نتیجه یو سیاسي مکتب دئ چي نه د چا په مذهبي عقایدو اړه لري نه د چا په آخرت کي مداخله کوي. نه د خدای او بنده د علایقو منځته ورلوېږي نه له آسمانه راغلې لاره ده، د نورو سیاسي مکتبونو په راز دا هم یو ډول دئ. ځکه ئې نو د دین او مذهب سره د تضاد سوال هم نه پیدا کېږي.

راسه د دې خبري او دغې رابطې له پاره یو مثال جوړ کړو: که د یوه مالدار نیشنلست پر دنیا کال تېر سوی وي او دی له هیواده لیري وي خو خپل زکوة د وطن بېنوایانو ته واستوي. یا فرضاً چي حج ته تللی وي او نسک او قرباني پر اوښتې وي او دی د دې خبري د اجراء له پاره په وطن کي چا ته صلاحیت ورواستوي یا یو نشنلسټ دولت د مکرر حاجي څخه د خدماتو او کراهیې له پاره تر نورو زیاتي پیسې د دې له پاره وغواړي چي مازاد ئې دلې د محتاجانو په مصرف ورسوي زما په گومان چي دغه ټول اعمال یو هم د مذهب مقابل ته نه دریږي او نه هم ممکن د مذهب په اعتبار مخالفت ولري. اما نشنلیزم غیر له مذهبه څخه نور اضداد لري هم په افراط کي هم په تفریط کي.

الف: د افراط و خوا ته د تفوق غوښتني او لویي غوښتني احساس دئ، چي نور اقوام په نظر نه ورځي او ځان یوازي د حکومت او رهبرۍ مستحق بولي او داسي گومان کوي چي خدای تعالی د دوی قوم ته امتیازي خصوصیات او ملکات ور په برخه کړي دي. نور قومونه د دې له پاره پیدا دي چي دوی حکومت پر وکړي او د هغو د مصلحت له پاره ئې دوی پر لار کړي او خپل حکم پر هغو باندي

د هغو نېکمرغي بولي. ټولي ښېګڼې د خپل قوم انحصار ګڼي. دغه ډول سیاسي نظر یا نشنلیزم په سیاسي ژبه Ultra Nationalism بولي. فاشیزم او شوونیزم ئې مظاهر دي. او د یهودو صهیونیزم او د المان نازیم ئې مثالونه دي. دا د نشنلیزم افراطي ضد دئ.

ب: د تفریط و خوا ته ئې کمونستي انټر نیشنلیزم او اخواني تحریک چې اصلاً یو سیاسي مکتب دئ او د مذهب بڼه ئې پر مخ غوړولې ده اضداد دي او دواړه د نیشنلیزم پر خلاف هم فعالیت کوي هم ئې تخریبوي هم ناوړه تبلیغ ورپسي کوي او کوښښ کوي چې د افراطي شکل سره ئې په التباس کي واچوي. د یوه معتدل نشنلیزم اهداف په افغانستان کي تر دغه پورته څه شي واوسي چې څوک د خپل اولس باسواده کول وغواړي، خپله ژبه وساتي، تقویه ئې کړي، خپره ئې کړي، غني ئې کړي او د خپل اولس له پاره ئې د زده کړي وسیله وګرځوي. په خپل اولس کي تعلیم عام کړي، خپلو خلګو ته کارونه، شغلونه او حرفې ور زده کړي، د خپل قوم د دوستۍ ذهنیت پرته له هغه چې د بل سره دښمني ئې نتیجه وي ور زده کړي. خپل د ژبې د رسمي کولو له پاره په واقعي صورت زیار وباسي. خپل تاریخ او خپل رجال ژوندي وساتي، د خپلي ژبې د ادب په تعمیم کي زیار وباسي. خپل سالم ملي دودونه له ورکېدو څخه وژغوري، خپل د ټولني اقتصاد تقویه کړي او د پردو له استثمار څخه ئې وژغوري. زه نه پوهېږم د دغه نو کوم ځای د مذهب او اسلام سره مخالف دئ؟ تر کومه ځایه چې زه ورته ګورم خو د دغه حرکت په نفع لا په مذهب کي دلایل هم پیدا کېدای سي. کله لا په ډېر قوت.

دا دئ زه به د استشهاد له پاره څو نمونې وړاندي کړم: د الشعراء په سوره کي ۱۰۶. ۱۲۴، ۱۴۲، ۱۶۱ آیتونه. چیري چي حضرات نوح، هود، صالح او لوط علیهم السلام خپلو قومونو ته د ورلېږلو له پاره د هغو ورونه بلل سوي دي څکه چي د یوه قوم خلک وه او یوه ژبه ئې ویل.

او د خبري اورېدو له پاره پېژندګلوي، شریکه ژبه او د یوه قوم نسبت ډېره اغېزه لري او کله چي په قوم کي دننه یوه عقیده ومنل سي وروسته بیا هغه مشترک میراث او ګډ ویاړ بولي. هم ئې په ساتنه هم ئې په شیوع کي هاند کوي. الشعراء ۱۹۸ – ۱۹۹ آیتونه و دغه حقیقت ته اشاره کوي کله چي وایي: "که چیري دا قرآن پر ځینو عجمیانو نازل سوی وای نو دوی (عربو) به پر هغهٔ ایمان نه وای راوړی". بیا هم د الشعراء په ۲۱۴ آیت کي حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته امر کېږي چي "خپله نژدې قبیله دي وبېروه".

د الشوری په ۷ آیت کي ارشاد دئ چي موږ تا ته عربي قرآن وحی کړی دئ څو ته ام القوی (مکه) او د هغه چار چاپېر وبېروي". په دغه آیت کي د ژبني اشتراک په اړخ کي د مېني و شراکت او اولویت ته هم اشاره ده او د همدغه سورت په ۲۳ آیت کي راغلي دي چي: "ورتهووایه چي زه ستاسي څخه نور عوض او اجر نه غواړم غیر له دغه څخه چي د قرابت په نسبت دویتس (راسره) وساتئ (یعني زه ستاسي له قبیلې څخه یم څکه نو دښمني مه

راسره کوئ).

د الانبیاء په ۱۰ آیت کي د عربي قومیت د اقناع په غرض راغلي دي چي "ما کتاب نازل کړی دئ چي په هغه کي ستاسي ذکر دئ آیا عقل نه لرئ" او که ذکر فقط یاد وګڼو هم د یادونو ور خبره ده چي هغه ته اشاره سوې ده پر دغه سربېره ئې کله کله په ویاړ او شرف هم ترجمه سوې ده.

په التوبه کي په ۱۲۸ آیت کي د پورته مطلب په شان وایي: "په تحقیق سره راغلی دئ تاسي ته پیغمبر ستاسي له جملې څخه" من انفسکم – ستاسي څخه، ستاسي له منځه، ستاسي له قومه. د الزخرف په ۳ آیت کي فرمایي: "موږ ګرځولی دئ قرآن عربي په کار ده چي تاسي پر عقل راسئ" او د دغه سورت په ۴۴ آیت کي راغلي دي: "او بېشکه چي دغه (قرآن) ستا او ستا د قوم له پاره ذکر (عزت او ویاړ) دئ او ژر به تاسي وپوښتل سئ". د طه په ۲۹ – ۳۰ آیتونو کي کله چي حضرت موسی علیه السلام د خپلي ژبي د نقیصې او یوازي والي د جبیرې په منظور له خدای تعالی څخه د حضرت هارون علیه السلام د مرستیالۍ غوښتنه وکړه. یا د الاعراف د سورت د ۱۴۲ په جوانه کله چي حضرت موسی علیه السلام د طور غره ته روان وو هم ئې حضرت هارون علیه السلام د ځان خلیفه وټاکه او که دا ټول کافي نه وي نو به زه یو دوه تشدیدي مثالونه هم درته رانقل کړم ګوندي هغه قناعت درکړای سي.

د القصص په ۱۵ آیت کي وګوره کله چي د یوه قبطي د یوه اسرائیلي سره جنګ وو او حضرت موسی علیه السلام پر راورسېدی. پرته له دې چي پر او ملامت معلوم کړي قبطي ئې په سوک وواهه او هغه مړ سو. که څه هم وروسته پښېمانه سو او دا ئې د شیطان لمسون وباله، تر هغه وروسته د مواخذې له ډاره پټ ګرزېدی. خو دغه د اخفا په شرایطو کي هم کله چي بیا یوه بله ورځ د هماغه سړي پر جنګ وربرابر سو کوم چي په لومړۍ پېښه کي هم د جګړې لوری وو او هغه بیا د حضرت موسی علیه السلام څخه مرسته وغوښته همدغه سوره آیت ۱۸، بیا هم حضرت موسی علیه السلام د قبطي پر خلاف د خپل اسرائیلي مرستي ته وروګرزېدی او داخل د اسرائیلي جنګیالي د غلط فهمۍ په وجه عملاً څه پېښه نه سوه.

که سړی دقیق سي او په سړه سینه د دې مقصد په ګټه د دلائلو په راغونډولو پسې سي ممکن ښایسته ډېر نور دلایل هم پیدا سي خو اوس به پر دغه صراحت کفایت وکړم. ممکن څوک ئې په تاویل مخه بل لور ته واړوي، اما د صراحت دلالت تر تاویل ډېر قوي او روښانه وي.

تا په خپل مکتوب کي ځیني حوالې په دې نظر ورکړي دي چي ګویا هغه[1] دي د دغه نشنلیزم کوم چي ما ئې تر اوسه توضیح کړې ده مخالف وي په داسي حال کي چي هغه ډول نه ده. مثلاً تا د الحجرات د ۱۳ آیت په وروستي برخه کي چي وایي: ان اکرمکم عندالله اتقاکم په داسي حال کي چي پوره آیت داسي دئ: بېشکه موږ پیدا کړي یاست (تاسي) له یوه نر او یوې ښځي څخه (په ازدواج) بیا مو

---

[1] مراد ئې شیخ صاحب دئ.

وګرزولاست قومونه او قبیلې تر څو سره وپېژنی (یو له بله په دنیا کې) وروسته وایي: "ان اکرمکم عندالله اتقاکم (په آخرت کې).

که چیري شعوب او قبایل فقط د پېژندګلوۍ له پاره وای، نو په حج کې چې ټولو خلګو احرامونه تړلي وي څه ډول سره پېژني؟ یا په حمام کي چي هر چا لنګ وهلی وي څه راز یو له بله سره پېژني؟ یا په اروپا کې چي ټول دریشي اغوندي، سره سره مخان، ژړ ژړ وربېتان، د هغو یو له بله د پېژندګلوۍ وسیله څه شي ده؟ لومړنۍ د پېژندګلوۍ وظیفه ژبه ده او دغه یوازي د معرفت وسیله نه ده، بلکي د قومیت وسیله هم ده. که یوازي معرفت منظور وي نو د کسب و کار په لحاظ د استوګني په اعتبار د فارقه علاماتو له مخي او د پلار، نیکه، ورنیکه په نسبت خولا دقیق پېژندل لاس ته راتلای سي. اما د شعوب او قبائل له لاري پېژندنه یو له بله سره د همبستګۍ مفهوم هم افاده کوي. په اعتدالي صورت او د مځکي پر مخ چي دلایل ئې وړاندي تېر سوه او همدردي نه یوازي پکښې جائزه بلکي پکښې واجب ده. اما کله چي د فرد او خدای تعالی اړیکو ته راسو هغه خبري یوازي د دنیایي روابطو له پاره پاتېږي. او د فرد تقوی د هغه درجه د خدای په حضور کي ټاکي، د دې معنی په هیڅ صورت منع نه ده. د حضرت آدم علیه السلام اولاد ډېر ښه سره پېژندل هغه وخت شعوب او قبایل نه وه، که مقصد هغه ډول معرفت وای بیا هم د شعوب او قبائل ضرورت لیري کېدی. دا چي د قیامت په ورځ د قوم او نسب پوښتنه نه کېږي مطلب دا دئ چي هلته مسایل ټول فردي دي او په فردي مسایلو کي د قوم او ملت مداخله نسته. اما دا خبره قومي رابطه نه نفي کوي او پر فردي صالح عمل باندي اصرار کوي.

شک نسته چي د چا شرافت او عزت د مال او نسب له لاري نه تامینېږي. بلکي د شخصي مکتسباتو له لاري لکه علم و ادب لاس ته راځي. دا خو یو شخصي هڅونه ده او سمه ده اما که چیري یو بنده و یوې مترقي، باسواده، مرفه ټولني ته پر شخصي علم و ادب سربېره هم منسوب وي آیا هغه به د داسي چا سره چي دا ډول نسبت نه لري برابر وي؟ که ئې جواب منفي وي نو مطلب دا دئ چي شخصي کمالات قومي نسبت نه نفي کوي که څه هم قومي نسبت د فردي هنر ځای نه سي ډکولای او که چیري فرد د قوم په ښو خویونو ونازېږي، او په خپله ئې هم ولري، دا به جواز ولري (وفیه ذکرکم).

اقبال واقعاً یو فیلسوف شاعر دئ او شاعر خو نو کله یو څه وایي. کله بل څه، کله وایي:

آسیا یک پیــــکر آب و گل است

ملت افغان در آن پیکر دل است

کله په خپل هندوستاني توب نازېږي، او کله په مسلماني. یو ئې وطن دئ بل عقیده. دا چي وایې په مسلماني کي نه افغان یو، نه ترک او نه تتاز، دا خو ئې مطلب یو پر بل باندي د تفاخر او تفاضل منع ده، واقعیت خو هم د ده په شعر او هم د "شعوباً و قبائل لتعارفوا" په حکم کي پر ځای پاته دئ[۲].

---

[۲] ما په خپل خط کي د اقبال دغه بیت "نی افغانیم و نه ترک نه تتاریم" د نشنلیزم د رد په باب ورته لیکلی وو.

راسه په آخر کي يو بل واقعيت ته هم توجه وکړو او هغه دا چي د حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم تر رحلت وروسته لومړی خليفه قريش وو. دوهم خليفه قريش وو. دريم خليفه قريش وو، څلرم خليفه قريش وو، اموي سلسله قريش وه، عباسي سلسله قريش وه، فاطمي سلسله قريش وه. د شيعه ګانو دوولس امامان قريش وه، له انصارو څخه هيڅوک نه وه. حتی له عربو څخه بل څوک نه وه او پر دې زمانه حضرت صاحب[3] لا هم په هغه استناد د دائمي خلافت دعوه کول. که دا ټول د نشنليزم اباحت ثابت نه کړای سي نو زه به ډېر خوښ سم که د هغه د حرمت په باب دلائل واورم. اوس نو ستا خوښه ده چي زما سياسي روش ردوې که اعتقاد. او که دواړه او د دې اختيار هم لرې چي يو يا بل دواړه تائيد کړې خو په دې شرط چي زما دغه حق هم ومنې چي زه د عقيدې آزادي ولرم.

۵. زما او د بچيانو په باب دي پوښتنه کړې ده. حق تعالی دي په هدايت کي ژوند ورکړي ستاسي سره او د هغو حال دغه دئ.

۱. زما مشره لور فريده نومېږي. حرفه ئې طبابت دئ په هند کي ئې ويلی دئ. د محترم رشاد صاحب د زوی ډاکټر طارق رشاد سره مو واده کړېده. هغه هم طبيب دئ د ننګرهار په پوهنتون کي ئې درس ويلی دئ. دوې لوڼي يو زوی لري. اوس په هالينډ کي پناهنده دي. منل سوي دي.

۲. زما زوی عبدالستار په منسک (سپينه روسيه) کي د برق د انجنيرۍ ماسټري تر لاسه کړېده. متاهل دئ. دوې لوڼي لري. زما سره اوس په هند کي دئ.

۳. زما زوی عبدالصبور درې کاله وړاندي په ماسکو کي د بين المللي روابطو په برخه کي د ماسټرۍ درجه واخيسته. هورې پاته دئ. عربي، انګليسي او روسي ژبې ئې زده دي. مجرد دئ. د نورو آواره افغانانو په شان هورې ژوند په دستګرداني او طوافي تېروي.

۴. زما زوی عبدالرشيد هم درې کاله وړاندي په ماسکو کي د موټر د انجنيرۍ درجه تر لاسه کړه. هورې د موټر په ترميم او انجينري لګيا سو. ګته ئې هم کول خو څه چي به ده ګټل مافيا به څني څټل. ناچاره سو کاناډا ته ولاړ، دا يو نيم کال کېږي، دی، مېرمن ئې او يوه لور ئې هورې پناهندګان دي. خو د پناهندګۍ له پاره ئې لا تر اوسه رسمي اسناد نه دي تر لاسه کړي. هغه هم هورې په مسترۍ ګري ګذاره کوي او په يوه ګاراج يا ورکشاپ کي مزدور دئ.

۵. زما زوی عبدالهادي څلور کاله وړاندي په بمبيي کي د ليسانس درجه وکړه. ماسکو ته ولاړ، يو کال ئې د خپلو ورونو سره دستګرداني وکړه، وروسته هالنډ ته ولاړ، هورې ئې پناهندګي منل سوې ده. دا درې مياشتي کېږي چي په يوه بانک کي نوکر سوی دئ. واده لري.

۶. زما کشره لور وږمه د تېر کال په وروستۍ مياشت کي په ډهلي کي د طب د زنانه فاکولټې څخه فارغه سوه. اوس د هغې

[3] مراد ئې صبغت الله مجددي دئ.

فاکولتې په شفاخانه کي ستاژ تېروي. د
جاري کال تر پایه وروسته شهادنامه اخلي.

اما زه په خپله یا پر ډاکټرانو او شفاخانو ګرزم یا د کور سوداوي راوړم. که د ورونو او خوندو بیان هم درته ولیکم نو "مثنوی هفتاد من کاغذ شود" او تا ئې پوښتنه هم نه ده کړې. خو هغه هم زما په شان آواره او پراګنده دي. یو په کاناډا کي دئ کورنۍ ئې په کراچي کي. بل په کراچي کي دئ یو زوی ئې په کویټ بل په لندن کي. خور مي په کراچي کي ده دوه زامن ئې په جرمني کي، بله خور مي دربست په هالنډ کي ده. دا نو د خدای تعالی حکم دئ او قسمت او موږ په رضامندي غاړه ورته ایښې ده.

د محترم سردار غلام رباني خان ذکر دي کړی دئ او د هغه سلامونه دي را استولي دي. سلامونه ئې علیه و علیکم. شکر چي ژوندی دئ خدای تعالی دي د ده ژوند په اوږدو اوږد او په پساره پسور ولري. هغه بې نهایته شریف او مؤمن انسان دئ او تر کومه ځایه چي زه معلومات لرم که عدیم المثاله نه وي نو کم نظیره خو ضرور دئ. تینګ او متواضع مسلمان دئ له لیري څخه زه هغه له طفولیته څخه پېژنم. په مکتب کي تر ما یو صنف وړاندي وو. د مرحوم سردار غلام جیلاني خان زوی دئ. مشر ورور ئې محترم غلام محی الدین خان نومېده که ئې وفات کړی وي هم دي ئې خدای وبخښي، که به ژوندی وي هم دي خدای تعالی ښه ورسره وکړي. هغه هم د ده په شان د معلمۍ شریفه وظیفه درلوده. په کومه چي زه هم څه وخت مصروف وم او زما پلار هم. د غلام رباني ماما غالباً نوراحمد اخندزاده او خاله ئې محترمه کوکو مامي د سید نورعلي او سید پیرمحمد آغا مور وه موږ او هغه په یوه کوڅه (د میرهزار جامع سره) اوسېدلو او کوکو مامي د ټول محل یوه محترمه بي بي وه. دوی (غلام رباني خان او غلام محی الدین خان) به په اخترونو د هغې اختر مبارکۍ ته راتله او ما لیدل.

وروسته مو په معلمي کي له نژدې پېژندګلوي سره پیدا سوه، رشتیا مو هم ډېر شطرنجونه سره کړي دي. کله کله به محترم (عبداللطیف حقاني) د مرحوم قاضي عبدالصمد خان زوی ګډون راسره کاوه او کله به محترم غلام محمد اخندزاده صاحب د مرحوم شراف الدین اخندزاده وراره د بالابین په توګه اشتراک راسره کاوه. دا هم محترم غلام رباني خان ته ور په زړه که، زما د زړه له کومي سلام او احترام ورورسوه او څکه چي دی ډېر پاک او بې غرضه سړی دئ زما له پاره د دعا التماس ورځني وکه.

٦. ستا وروستۍ پوښتنه د هیواد د آینده په باب ده. که تفصیل درته لیکم نو کم از کم دومره نور غواړي لکه دا چي تر اوسه ولیکل سوه. څکه تر څو تاریخي پس منظر څرګند نه وي د داسي حوادثو نه فهم ممکن دئ او نه ئې څېړنه ځای ته رسېږي او که مي رشتیا پوښتې زه په موجوده لیکنه ستخ سوم. ادو بدو سوم. سترې سوم. په وس مي نه ده پوره او دغه د آینده او سبا په باب خبري لېږد فال بینۍ جنبه لري نو د هغه په جواب کي "الغیب عندالله" کفایت کوي څکه خدای تعالی هم فرمایي چي: "مېره په دې نه پوهېږي چي سبا به څه

کوي" ځکه چې ما ستا سره وعده کړې وه چې په هر وخت کې به د مرحوم شیخ صاحب له خاطراتو او روایاتو څه څه درته لیکم. په دې خط کې ما د مرحوم د سیاسي نظر څه توضیح وکړه که چیرې هغه ژوندی وای لا به ئې په ښه استدلال دفاع کړې وای. د دې له پاره چې زه په خپله وعده کې تر شا پاته نه یم او د دې له پاره چې ستا پورته یادي سوي پوښتني ته مې ضمني جواب ویلی وي زه به د شیخ صاحب مرحوم یوه قصه درته ولیکم خو د ځان په باب به درته ووایم چې "کل اگر طبیب بودی – سر خود علاج کردی".

القصه: یو وخت مو په ځواني کې د وطن پر مسایلو او د هغه د نیمگړتیا او بیرته پاته والي لیري کولو په باب مجلس گرم کړی وو. "کل اناء یترشح بما فیه" هر چا د خپل فهم او ذوق او سلیقې مطابق طرحې وړاندې کولې. خو په ټولو کې یو ټکی شریف وو. هغه دا چې احوال هیڅا هم د احوال او ظروفو رعایت د ایجاباتو او غوښتنو لحاظ، د خلگو وضع، اجتماعي، اقتصادي او سیاسي شرایط په نظر کې نه نیول او د هر چا د مطلق واک او اختیار په تصور کې پر ته له کوم ممانعته خپلې نسخې وړاندې کولې او داسې فکر ئې کاوه چې د قدرت مرکز هر څه چې وغواړي د خپلې سلیقې سره سم ئې کولای سي. او دا چې تر اوسه نه دې سوي یا نه کېږي نور هر څه نسته فقط اراده ئې نسته. نو د ناروغ هیواد له پاره به یوه تر هر څه تعلیم او سواد مهم باله او و هغه ته د توجه له لاري به نو مطمئن وو چې نور هر څه په خپله لاري ته راځي.

بل اقتصادي انکشاف د هیواد د تقویې اصلي کیلي بلله. او یوه بل به په دغه اقتصاد کې د زراعت وده د خودکفایي له پاره تر هر څه مهمه وبلله، ځکه چې د صنعت له پاره اومه مواد له دغې لاري راځي. بل تر مځکي لاندې ثروات ډېر مهم وبلل او هغه ته ئې ډېره توجه لازمه بلل چا به لاري او مواصلات او چا هم انرژي او برق یا نور زیربنایي موسسات. د نظریاتو په وړاندي کولو کې جدیت ډېر وو. مرحوم شیخ صاحب د خپل عادت مطابق یا هم ځکه چې نوبت نه ور رسېدی پټه خوله ناست وو. خو کله چې ملگرو په ډېر اصرار د نظر ښکاره کولو ته دعوت کړ، نو هغه وویل: چې که زه د دغسي واک تښتن سم یوه آماده او مجهزه طیاره راغواړم نور ئې څه و نه ویل. خلک حیران سوه. پوښتنه ئې وکړه چې ښه نو شیخ صاحب! ویل بس دغه طیاره راغواړم. خلک نور هم حیران سوه چې شیخ صاحب ولې؟ هغه وویل په دغه طیاره کې کښېنم او د ابد له پاره و یوه نامعلوم طرف ته ځم!

د دغې حکیمانه خبرې په عمق هغه وخت موږ پوه نه سوو، او ومو خندل اوس چې ئې په ترجمه وپوهېدو ژاړو خو هغه طیاره رامیسره نه ده. ممکن ته هم د خپلې پوښتني جواب پکښې پیدا کړای سې. که چیرې ښه ورته ځیر سې. نور دې نو خدای تعالی ته سپارم. دا اوږد خط چې درباندې تحمیلوم عفوه غواړم. په مخه دې ښه!

هاتف





میان غلام شاه چي د احمدشاهي دربار د سندهـ په اميري رسماً پېژندل سوی وو د کچهـ پر خوا ئې نوري سيمي هم په خپل مملکت کي شاملي کړې او په سندهـ کې خپل اقتدار زيات کی، نو احمدشاه بابا ډېرهٔ غازي خان او ډېرهٔ اسماعيل خان هم ده ته وسپارل او د "شاه وري خان هژبرجنگ" لقب ئې هم وروباخښه.

میان غلام شاه په (۱۱۸۲ هـ) کال په نيرون کي د حيدرآباد کلا جوړه کړه او تر احمدشاهي امر لاندي ئې په موفقيت حکومت کاوه، خپل خانوادگی رقيبان ئې ټوله مات کړل او د سندهـ سرحدونه ئې وساتل، او د ده مملکت د احمدشاهي امپراتورۍ يو مهم جز وو، د احمدشاهي دربار نمايندگان تل د سندهـ په دربار کي موجود وه او د سندهـ وکيل او سفير گدومل د کندهار په دربار کي ناست وو.

او په دې ډول احمدشاهي دربار په خپل جوار کي د سندهـ اميران جلا، او د بلوڅو د کلات اميران بېل ساتلي وه او افغاني دربار د دوی د قوت او امارت مرکز وو.

مگر ميان غلام شاه په آخر کي په خپل قوت مغرور سو، او غوښتل ئې چي له احمدشاهي درباره څخه سرکښي وکي، ولي چي دغه د احمدشاه بابا د ژوندانه آخر کال وو، او دی د کندهار د کوړك په توبه کي مريض پروت وو، خو په دغه وخت کي ميان غلام شاه د فالج په مرض اخته او د جمادی الاولی په دريمه په (۱۱۸٦ هـ) کال مړ سو، او د سندهـ مشرانو د ده زوی محمد سرفراز خان د هغه ځای امير کی، او داسي پيغامونه ئې د کندهار دربار ته راولېږل چي د دوی روابط د افغاني شاهنشاهی له مرکزه سره وران نه سي.

د کندهار د دربار رجال دغه وخت د شاهنشاه په ناروغي بوخت وو، او دا فرصت هم نه وو چي دوی د نورو ځايو فکر وکي، شاه ولی خان اشرف الوزراء او شهزاده سلېمان د احمدشاه بابا زوی په کندهار کي وو، او تېمور مشر شهزاده په هرات کي حکمراني درلوده. او دا هم نه وه معلومه چي تر احمدشاه وروسته به آيا د ده په اندازه کم لايق زمامدار د افغانستان نصيب سي که يه؟ خکه، چي د افغانستان لويه شهنشاهي په دې وخت کي له نيشاپوره تر سرهنده رسېده، او په دې جمله کي لکه سندهـ غوندي لويي لويي سيمي هم شاملي وې، چي هر ځای جلا زمامداران تر احمدشاهي سلطنت لاندي موجود وه او دغو يوه قوي اداره او مرکزي غښتلي قوت غوښت.

په داسي حال کي احمدشاه بابا څو مياشتي پس د (۱۱۸٦ هـ) کال د رجب پر شلمه د توبې په غره کي وفات سو، او د ده لوی زوی شهزاده تېمور له هراته کندهار ته راغی او پر تخت کښېنوست.

کله چي د احمدشاه بابا د وفات او د تېمورشاه د جلوس خبر سندهـ ته ورسېدی نو ميان سراز خان يو سفير مير بهرام خان تالپور د تعزيت له پاره د کندهار دربار ته راولېږی او خپل اطاعت ئې د پخوا په ډول د تېمور شاه دربار ته ښکاره کی. د افغانستان نوي پادشاه هم د ميان سرفرازخان په نامه يو شاهي فرمان صادر کی چي د ده امارت په سندهـ کي د افغاني سلطنت تر اثر لاندي ومنل سو، او هم د سندهـ امير ته خلعتونه او د "خدايارخان" لقب د کندهار له درباره ورکړ سو.

په دې ډول د افغاني وروستنيو پادشاهانو روابط د سندهـ د اميرانو سره دوستانه وه او هر کال به هغو افغاني مرکزي خزانې ته د سندهـ ماليات رالېږل او د دغو دوو گاونډيو قومونو وېش هم ښکاړه وو، چي د امير دوست محمد خان تر زمانې پوري لا هم د کندهار له خوا هلته حاکمان مقررېدل او که به کله هلته کم شورښت پېښېدی نو افغاني دربار به د امنيت له پاره د سندهي اميرانو سره کومکونه کول او دې روابطو تر هغه دوام وکی چي په (۱۸۳۹ م) کال د انگرېزانو اوله حمله پر افغانستان باندي د سندهـ او درهٔ بولان له خوا د شاه شجاع په کومك د انډس آرمي په سوقياتو سره شورو سوه.

د احمدشاه بابا سلطنت پر سندهـ باندي کم نوی کار نه وو، بلکي د (۹۰۰ هـ) کال را په دې خوا د سندهـ ادبي او کلتوري روابط د هرات د تېموري کورنی له سلطنته سره محکم وه او کله چي د هرات تېموريانو سلطنت ضعيف سو نو له هراته ډېر علمي او ادبي او کلتوري کاروانونه سندهـ ته ولېږدېدل او د سندهـ د ارغوني او ترخانې او تالپورې شاهانو اصلي وطن هم هرات يا د افغانستان شرقي سيمي وې. نو ځکه د سندهـ فرهنگي جوړښت داسي راغلی دئ چي د هغه رېښې له هراته يا له کندهاره هلته غځېدلي وې او تر اوسه لا هم ډېري غټي افغاني کورنی هلته اوسي، چي د دوی نيکه گان له افغانستانه تللي او افغاني ثقافت ئې پکښي جوړ کړی وو[1].



[1] وږمه مجله، ۱۳۵۲ ل کال شپږمه گڼه، ۱ - ۵ مخونه.

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department

## د احمدشاه بابا له غزلو څخه

سـخ د ائينې دئ، چي دي تل و مخ ته گوري
سـخ د لونگين دئ، چي دي پاس پر سـينه ښوري
نه دي سـتا په غومو غتې غتې مرغلري
وصل دي په مياشـتې پوري يو سر بـل سر سـتوري
روغ مي کړه له رنځه چي د خولې ښېرې دي واورم
شهدوشـکر ورک کړه چي مي سـتا شـوندې وزوري
زه که ډوب په غم يم تل دي ډوب يم چي عاشـق يم
تا دي خدای دلبره تل له هري بـلا ژغوري
ظلم دي د دوو سـترگو هر گوره پر ما زور سـه
چيري تـوان مجـال د زور و زر لـري کمـزوري
ما ته و ارزان دي بـيا له مشـک و تر عنبره
څوک که توري خاوري سـتا د پله په بـيها پلوري
درومي سـتا و لور ته په ارمان ارمان کاته
سپين ئې په کاته سـو احمدشـاه د سـترگو توري



The Afghanistan Subnational Governance Programme

چاپخای: ملالی مطبعه - کندهار